د هر بالغ شخص ضرورت

# پټې مسئلې

هغه مسئلې چې عموماً يې
خلق په پوښتنه کولو شرميږي

مرتب

فضل امين حقاني



نيازي کتب خانه
سردار پلازه اکوړه خټک

نور الله نيازي
0313-9090423

فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

د هر بالغ شخص ضرورت

# پټې مسئلې

هغه مسئلې چې عموما يې خلق په تپوس کولو شرميږي


مرتب

فضل امين حقاني

ترتيب کوونکی عزت الله سلطانزی

0093706912702



Scanned with CamScanner

# د کتاب پېژندنه

| د کتاب نوم | پټې مسئلې |
|---|---|
| مرتب | فضل امین حقاني |
| د چاپ وار | لومړی ځل |
| د چاپ کال | جنوری 2020 |
| ترتیب کوونکی | عزت الله سلطانزی 0093706912702 |
| ناشر | نیازي کتب خانه سردار پلازه اکوړه خټک |
| شمېر | 1100 ټوکه |

دا کتاب عزت الله سلطانزی تلیګرام چینل څخه ښکته شوی

https://t.me/Ezatullah_Sultanzai

دنورو کتابونو لپاره زمونږ د تلیګرام چینل څخه لیدنه وکړی

او یا هم زمونږسره په واټساف یا فیسبوک اړیکه ټینګه کړي

*0093706912702*

*www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai*

# فهرست

Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

Scanned with CamScanner

## مقدمه

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده ونصلي على رسوله الكريم . په ژوند کې د مسائلو د اهميت نه څوک انکار کولې شي په څلوېښتو ساعتونو کې مونږ د ښې شميره مسائلو سره مخامخ کيږو چې هغه عموما د انسان په علم کې وي يا د علماء کرامو نه معمول شي او عمل پرې کولې شي خو ما مشاهده کړې ده چې هغه مسئلې چې د هغې د تپوس کولو سره انسان شرميږي د هغو د معلومولو نه پرهيز کولې شي. تردې پورې چې کوم خلق د شرم پرواه نه کوي او د معلوملو کوشش يې کوي نو په هغوی باندې هم د تپوس کولو په وخت کې خوله راځي . او کله کله ژبه هم نخلي. خو اکثره خلق يې تپوس نه کوي او په ګناه کې اخته کيږي . او دا مسئلې عموما د تپوس نه کولو د وجې نه (ښځې مسئلې) جوړيږي د ډير وخت نه مې خواهش ؤ چې دغه شان مسئلې راجمع کړای شي . کومې چې په کتابونو کې جدا جدا موجودې دي الحمد لله اوس دا مجموعه ستاسو مخې ته ده؛ په دې کې دی الله زمونږ د مدرسې استاذ محترم مولوي انور کمال صيب ته جزائے خير ورکړي چې دوی زما ډير مدد اوکړلو . د علماؤ کرامو په خدمت کې درخواست او عرض دی . که په دی مسئلو کې څه غلطي په نظر راشي. نو ماته دی ضرور خبر راکړي. انشاءالله بيا دپاره به دا غلطي لرې کوؤ. الله تعالى دې کتاب ته مقبوليت ورکړي. او لوستونکو ته دې د پوره فائدې اخستلو توفيق ورکړي. او مونږ دپاره دې يې د دواړو جهانونو دپاره د ثواب ذريعه جوړه کړي

بنده محمد نعيم



Scanned with CamScanner

# د پاکې او ناپاکې مسئله

د نجاست د اوصاف ئې وارړه چې درې استعمال اوبو ناپاکه داسې د شوې بدل ئې رنګ او .بوئ . خوند يعني .وي شوي بدل نه چې وجې نه ئې .دې نه صحيح ته قسم هيڅ استعمال اوبو داسې د .وي صحيح اچول کې خاوره په ئې نه او دې صحيح وركول ته خناورو ئې ته خناورو نو شوي بدل وي نه ئې اوصاف وارړه درې که .دي سره خاورو داسې په خو دې صحيح اچول ئې کې خاوره په يا وركول پکار دې نه جوړول جومات

[بهشتي زيور يولسمه حصه كتاب الطهارت ص ۶]

## په غلې (جوارو غنمو وغيره) باندې د غويانو د چلولو په وخت کې كه متيازې اوكړي نو څه حكم ئې دی؟

د غلې دغوبل كولو په وخت كې كه غويان په غله باندې متيازې اوكړي. نو د ضرورت د وجې نه معاف دې يعني غله پرې ناپاكه كيږي نه . او كه ددې وخت نه علاوه ئې پرې متيازې اوكړې نو غله به ناپاكه شي ځكه چې دلته ضرورت نشته. [ابرنې حواله ص ۷]

## په ميوو كې چې كوم چينجي وي د هغې حكم

د ميوو وغيره چينجي پاک دې خو خوړل ئې صحيح نه دي. كه ساه پكې راغلې وي [ابرنې حواله]

## دخوړلو څیزونه چې خراب شي نو څه حکم لري

که د خوړلو څیزونه خراب شي. نو ناپاکه کیږي نه. لکه غوښه . حلوه وغیره خو که نقصان د وجي نه ني خوړل صحیح نه دي
ابرني حواله ص ۱۸

## د پیو د راویستو په وخت کې که پچه پکې پریوزي

د شودو د لوشلو په وخت کې که په شودو کې د چیلی پچه یا د غوا میخې ګندګي د پچې په اندازې سره پریوزي نو معاف ده. په شرط ددې چې د پریوتلو نه سمدستې روستو ني اوباسي. او که د پیو د ویستلو نه علاوه په څه بل وخت کې پکې پریوزي نو پی پرې ناپاکه کیږي. ابرنی حواله ص ۱۹

## د وړو او لویو بولو نه چې کوم بخارات اوچتیږي د هغې حکم

عموماً چې کله انسان د یخنی په موسم کې متیازي یا غل کوي نو د هغې نه د لوګي په شکل کې بخارات اوچتیږي. او سړې په دیکې شک کیږي. نوپه بهشتي ګوهرکې یې د ردالمختار په حوالې سره دا بخارات پاک لیکلي دي. احواله بالا ص ۱۱

## د متیازو د وړو وړو څڅکو څه حکم دی

په نورالایضاح کې په باب الانجاس والطهارت کې لیکلي دي ‹وعفی رشاش بول کرؤس الابر› د متیازو وړې قطرې چې د ستنې د سر برابر وي معاف دي.

## ناپاکه څیز په اوبو کې د پرېوتلو د وجې نه د اوبو نه چې کومې څرېکې او چتې شي د هغې حکم

که یو ناپاکه څیز په اوبو کې پرېوتو او د اوبو نه څرېکې اوچتې شوې او په چا باندې پرېوتې . نو هغه پاکې دي تر کومه پورې چې د نجاست اثر په دې قطرو کې نه وي ابهشتي ګوهرص ۱۰]

## د تشناب په لوټه کې چې کومې ناپاکه اوبه وي د هغې د پاکولو طریقه

د تشناب د لوټې په اوبو کې که شک وي نو په دې لوټې کې دې دومرد اوبه واچولې شي چې اوبهیګي. نو لوټه که ناپاکه وي پاکه به شي

## نجاست که اوسوزي نو لوګې ئې پاک دی

نجاست که اوسوزي نو لوګې ئې پاک دی. اوکه هغه لوګې سره ټینګ شي او څه څیز ترې جوړکړې شي. نو هغه څیز پاک دی. لکه نو شادرچې د نجاست د لوګې نه جوړیګي. ابهشتي ګوهر]

## په ناپاکې باندې د ګرد حکم

په نجاست باندې چې کوم ګرد وغیره وي هغه پاک دی. په شرط ددې چې د نجاست اثر په ګرد کې ښکاره شوې نه وي [حواله بالا]

## د حلال ځناور ګندګې پاکه ده

د حلال ځناور ګندګې پاکه ده تر څو چې ماته شوې نه وي

[حواله بالا]

## په کومو ځایونو کې واړه او لوی بول کول مکروه دي

د سپوږمۍ یا نمر طرف د وړو یا لویو بولو کولو په وخت کې مخ کول یا شاه کول مکروه دي همدغه شان د نهر یا تالاب (ډنډ) وغیره په غاړه متیازې وغیره کول مکروه دي. که څه هم نجاست پکې نه پرېوزي همدغه شان د داسې ونې لاندې چې خلق ترې لاندې کېني. جومات او عیدګاه ته دومره نژدې چې بدبویي ئې مونځ کونکو ته تکلیف ورکوي. په مقبره او هدیره کې داسې ځای کې چې هلته خلق اودس (چاراندام) یا غسل کوي ... لاره کې د هوا په طرف په سوري کې. لارې ته نژدې یا قافلې یا څه اجتماع ته نژدې متیازې کول مکروه تحریمي دي (حواله بالا ص ۱۱)

## د متیازو وغیره په وخت کې د کومو کارونو نه بچ کېدل پکار دي

خبرې کول. بغیر د ضرورت نه ټوخې کول. آیت شریف. حدیث شریف یا د برکت والا څه ځیز لوستل. داسې ځیزونه چې هغې باندې د الله تعالی یا نبي صلی الله علیه وسلم یا دعا پرې وي د ځان سره وړل. البته که داسې یو ځیز په جیب کې وي یا تعویذ وغیره په کپړه کې بند وي نو کراهت پکې نشته. بغیر د ضرورت نه په ملاسته یا ولاړې متیازې وغیره کول. په ښي لاس باندې استنجا کول ددې ټولو کارونو نه ځان ساتل پکار دي (حواله بالا ص ۱۱)



# د اودس بیان

## د هوا وتونکي سړي خوب باندي اودس نه ماتیږي

که یو سړي ته د خروج ریاح (هوا وتلو) مرض وي. نو د ده په خوب سره اودس ماتیږي یا نه ماتیږي په دیکې دوه قوله دي. علامه شامي صیب وائي چې داخبره صحیح ده چې اودس ئې نه ماتیږي (فتاوی دالعلوم دیوبند ص ۱۲۴)

## وینه د توکانړو نه زیاته وي نو اودس ماتیږي

که د یو سړي د غاښونو نه وینه راځي نو که وینه د ت نه ډیره وي نو په دي صورت کې اودس ماتیږي (حواله بالاص ۱۲۲)

## د ښځې د سینې نه د پیو په وتلو سره اودس نه ماتیږي

د ښځې د سینې نه د پیو (شیدو) په وتلو سره اودس نه ماتیږي (حواله بالا)

## د مالوچو د وجې نه که د متیازو قطره باهر راؤنوځي نو اودس نه ماتیږي

که چا د یرې وجي نه مالوچ په خپله شرمګاه کې کیښود. ددې نه روستو د مثانې نه د متیازو قطره خارجه شوه. او بهر رانغله نو اودس نه ماتیږي، او که د مالوچو په بهرنۍ حصه اثر ښکند شو نو اودس ماتیږي (حواله بالاص ۱۲۸)

Scanned with CamScanner

## ښځې ته په لاس لګولو سره اودس نه ماتيږي

که خاوند ښځې ته لاس اولګوي يا ښځه او خاوند خپلو کې ذکر او فرج (شرمګاه) ميلاو کړي او په مينځ کې د کپړې وغيره څه رکاوټ نه وي نو اودس نه ماتيږي [حواله بالاص ۱۲۹]

## د ماشوم د مونځ په حالت کې شيدې ځکل

که يوه ښځه د مونځ په حالت کې ماشوم ته شيدې ورکړي . نو اودس پرې نه ماتيږي. البته مونځ به فاسد شي.

[حواله بالاص ۱۳۰]

## د اودس په حالت کې په ښځه باندې د شهوت نظر کولو سره اودس نه ماتيږي

که يو بااودسه سړي ښځې ته د شهوت په نظر سره اوکتل نو اودس ئې نه ماتيږي. خو شرط دادې چې مذي وغيره ترې خارجه شوي نه وي. [حواله بالاص ۱۳۰]

## د اودس کولو په وخت د هوا ايسارول

که د اودس په حالت کې يا د مونځ په حالت کې چا هوا ايساره کړه. او خارجه نه شوه نو اودس او مونځ ئې صحيح دي.

[حواله بالاص ۱۳۵]

## شرمګاه ته لاس لګولو سره اودس نه ماتيږي

شرمګاه ته کتلو يا لاس لګولو سره اودس نه ماتيږي.

[حواله ص ۱۳۵]

Scanned with CamScanner

## د خنزير د ويښتانو نه د جوړ شوې برش حکم

د خنزير د ويښتانو نه د جوړشوي برش متعلق که دا يقين وي . چې د ادا خنزير د ويښتانو نه جوړ شوې دی نو ددې استعمال د مسلمانانو د پاره حرام دی. او چې کله ددې په ډبي باندي برسلز يا ددې شان بل لفظ ليکلې وي اکفايت المفتي ص ۱۳۲

## که هوا د شرمګاه دمخکې طرف نه اوځي

که هوا د مخکې د طرف نه اوځي. نو اودس نه ماتيږي. خو هغه ښځه چې د وړو او غټو بولو لاره ئې يوه شوې وي نو هغې دپاره احتياطې اودس کول پکار دي اخيرالفتاوي ص ۱۴۰۹

## د سلسل بول والا د اودس او د کپړو د طهارت مسئله

چې کوم سړې معذور وي . او هروخت ورته د مثانو قطرې راځي چې يو خل اودس اوکړي نوبيا که قطرات ورته راشي. نو اودس يې نه ماتيږي خو د بل وخت د مونځ دپاره به بل اودس کوي
احواله بالا ص ۱۲۳

## سړی معذور کله جوړيږي، د معذور څه حکم دی، سړی به د معذور د حکم نه کله اوځي

چې کوم سړی معذور وي مثلا بولو قطرې ورله راځي. يا د کيس مريض وي. يا باربار ورله وينه راځي. نو د داسې سړي د اودس په باره کې به درې خبرو ځان پوهه کړئ. سړی معذور کله جوړيږي. د معذور څه حکم دې. د معذور د حکم نه به کله وځي: سړی معذور

هلته جوړيږي چې کله په هغه باندي د يو مونځ مکمل وخت داسې تير شي. چې هغه ته دومره وخت پکې ميلاؤ نشي. چې اودس اوکړي او فرض مونځ اوکړي مثلا د سحر د مونځ وخت په لس کم پنځه بجې داخليږي تر شپږنيمو پورې پاتې کيږي. نو په دې ټول وخت کې ده ته دومره وخت ميلاؤ نشي. چې دې پکې اودس اوکړي. او فرض مونځ اوکړي. چې که هم داسې وخت پرې تيرشي.نودا سړی شرعا دمعذورپه حکم کې داخليږي

## د معذور حکم

د معذور دپاره حکم دادی چې د هر مونځ په وخت کې په دې اودس کوي. او ددې مونځ په وخت کې په دې اودس باندي فرض. واجب. نفل وغيره کولې شي

## د معذور د حکم نه به کله وځي

چې کله په معذور باندي د يو مونځ مکمل وخت داسې تيرشي. چې يو ځل هم ورته عذر پيدا نشي. نو شرعا داد معذور د حکم نه او وتو. او په ده باندي د عام صحت منده خلقو احکام جاري کيږي

## د معذور د کپړو حکم

داسې معذور سړی چې د متيازو قطرې ورله راځي. يا وينه ترې لګه لګه بهيږي. که دومره وخت ورته نه ميلايږي چې کپړې وويئځي. او اودس اوکړي او مونځ نه فارغ شي. بلکې کپړو پنځلو. اودس او مونځ نه فارغيدلو نه مخکې ورته دوباره

وینه یا متیازې راخي او کپړې ناپاکه کیږي، نو شرعاً داسې سړي ته د کپړو پاکول ضروري نه دي. او که دومره وخت ورته میلاویږي چې کپړې پاکې کړي او اودس او مونځ اوکړي نو بیا ورته کپړې پاکول ضروري دي

## د سیلان په مرض کې داودس د حفاظت تدبیر

داسې ښځه چې د شرمګاه نه ئې اوبه بهیږي هغې ته ترکومه پورې چې مونځ کې د اودس د ماتیدو یقین نه وي. نو مونځ یې کیږي. بلکې داسې ښځې ته پکار دي چې په شرمګاه کې مالوچ وغیره کیږدي. چې اوبه پکې جذب شي. ترکومه پورې چې د مالوچو هغه حصه چې کومه د شرمګاه د کول (غونډ) سوري نه بهر وي. په هغه باندې لوندوالې څرګند شوې نه وي. نو اودس به نه ماتیږي
[احسن الفتاوی ص ۸۰]

## د بواسیرو د وجې نه وتونکي وینه

د بواسیرو د وجې نه وتونکې وینه په بواسیرو کې د مخرج (دنا پاکۍ د وتلو ځای) نه بهر مسې او د مسو په جرړو کې زخم وي ددې چې کوم لوندوالې یا وینه راځي. او په کپړو باندې لګیږي نو ددې حکم د مفتي به قول مطابق دادی چې نه پرې اودس ماتیږي . او نه پرې کپړې ناپاکه کیږي. اخلاصه من کفایت المفتي ص ۳۱۲]

## دبواسیروپه مسو باندې د تیلو لګولو وخت لاندې ګوته داخلول

د بواسیرو په مسو باندې د تیلو لګولو په وخت کې که لنده ګوته به مخرج کې داخله کړې شي. نو اودس پرې ماتیږي او که په مخرج

کې تیل دننه اولګول شي. او تیل بهر راووځي. نو اودس پرې ماتیږي ځکه چې دا تیل ناپاکه دي. او که دا تیل مخرج ته نژدې په کپړو اولګي. نو په دې سره به کپړه ناپاکه شي. لهذا ښه صورت دادې چې د تیلو لګولو نه روسته طرفونه په ښه شان پاک کړې شي. بیا که د تیلو اثر په کپړې باندې ظاهره شي. نو کپړې به ناپاکه شي.
[امداد الاحکام ص ۳۴۸]

## که د یو سرې د روستو شرمګاه څه حصه بهر راووځي

که د یو سرې د مشترکې حصې روستو شرمګاه څه حصه بهر راووځي . نو په دې سره اودس ماتیږي. برابره خبره ده. چې دا حصه پخپله دننه لاړه شي. یا په څه لرګي. لاس یا کپړې سره دننه کړلې شي.

## مني که بغیر د شهوت نه اووځي نو اودس ماتیږي

مني که بغیر د شهوت نه خارج شي. نو اودس پرې ماتیږي. مثلا چا بوج اوچت کړو. یا دلوړځای نه راپریوتو. او ددې وجې نه مني بغیر د شهوت نه راووځي. نو اودس پرې ماتیږي. ابهشتي ګوهر ص ۱۳]

## د مني، مذي او ودي تعریف

مني هغه ټینګه اوبه ده چې شهوت سره د احتلام یا د جماع په وخت کې راووځي. مذي هغه نرۍ شان اوبه ده چې شهوت سره راووځي. او ودي هغه خړرنګې اوبه ده چې د متیازو نه روسته راوځي.

## که د مشترکه حصې نه چینجي راوځي نو اودس ماتیږي

که د دبر (د غټوبولو ځای) نه چینجې راوځي نو اودس پرې ماتیږي.
[خیر الفتاوی ص ۲۵]

Scanned with CamScanner

# د غسل بیان

په خان ته خای کې بربنډه غسل کول جایز دي. البته سر پټول افضل دي. احسن الفتاوی ص ۳۱

## په غسل کې د مصنوعي غابښونو حکم

که چا داسې غابښونه لګولي وي چې اوباسلې نشي. نو بغیر د اوباسلو نه ئې غسل کیږي. حواله بالا ص ۳۱

## د جنابت په حالت کې سلام

د جنابت په حالت کې سلام کول. مصافحه کول. او خوړل څکل جایز دي. البته د خوراک نه مخکې خلې ته اوبه اچول پکار دي
احواله بالا ص ۳۲

## بغیر د غسل کولو نه دوهم خل کوروالې کول

د یو خل کوروالي کولو نه روسته بغیر د غسل کولو نه دوهم خل کوروالې کول صحیح دي. خو غسل یا اودس یا کم از کم استنجا کول افضل او مستحب دي. احسن الفتاوی ص ۳۵

## د جنابت په حالت کې وینسته او نوکان پریکول

د جنابت په حالت کې وینسته او نوکان پریکول مکروه دي. خو دقراینو نه مکروه تنزیهي معلومیږي. احواله بالاص ۳۸

Scanned with CamScanner

## د جنابت په حالت کې د ذکر او تلاوت حکم

د جنابت په حالت کې کلمه طیبه. درود شریف. او هر قسم ذکر کول جایز دي. البته د قران کریم تلاوت کول ناجایز دي.

[احسن الفتاوي ص ۳۸]

## په غسل کې غرغره فرض ده که صرف خولې ته اوبه اچول

په غسل کې داسې خولې ته اوبه اچول فرض دي. چې ټولې خولې ته اوبه اورسي. او غرغره کول د روژه دار نه علاوه نورو ته سنت دي. [فتاوی دیوبند ص ۱۴۰]

## د جنابت په غسل کې کمڅې پرانستل ضروري دي

د ښځې د سر ویښتان که سره تړلي شوي وي او کمڅې ئې ترې جوړې کړې وي نو دا پرانستل او ویښتان لوندول په غسل کې ضروري نه دي. بلکې د ویښتانو ویخونو ته اوبه رسول کافي دي. او که ویښتان ئې پرانستلي وي نو لندول ئې ضروري دي.

[حواله بالا ص ۱۴۵]

## کېړې سره په دخول کولو د غسل حکم

د سرې حشفه د اله تناسل سرد ښځې په مخصوص اندام کې داخل شي. نو غسل فرض کیږي. برابره خبره ده چې مني وتلي وي او که نه وي وتلي. که خاوند او ښځې دواړو کېړې اچولي وي او مذکوره صورت پیښ شي. یعني خاوند خپل ذکر په کېړه کې اونغاړي. او بیائي د ښځې په شرمګاه کې داخل کړي. نو احتیاط دادی چې

Scanned with CamScanner

غسل اوکړي، په درمختار کې دي (الاحوط الوجوب، يعني احتياط دادی چې غسل واجب دی. [حواله بالا ص ۱۴۹]

## د کوروالي نه روسته سمدستي غسل کول ضروري نه دي

د کوروالي نه سمدستي روسته غسل کول بهتر دي. خو که څه لږ شان تاخير اوشي. نو څه ګناه نه ده. [حواله بالا]

## مني که په لاس سره بنده کړې شي نو څه حکم يې دی

که چا احتلام ر د شيطان دهوکه کول، بند کړو. او روسته بغير د شهوت نه قطرې خارجې شوې. نو دامام ابويوسف په نز باندې غسل نه واجبيږي. او د امام صاحب او امام محمد په نزد غسل واجبيږي. او په همديکې احتياط دی. [حواله بالا ص ۱۵۰]

## که د ښځې نه مني اووتله

که د ښځې نه د سړو په شان په شهورت سره مني اووتله. نو په ښځه هم غسل واجبيږي [حواله بالا]

## په ګوته داخلولو سره غسل نه واجبيږي

که سړي قصدا د ښځې د متيازو په ځاى کې ګوته داخله کړه. په دې حالت کې په ښځه باندې غسل نه واجبيږي. [حواله بالا]

## که نابالغه د بالغې جينۍ سره کوروالي اوکړي

که نابالغه هلک د بالغې جينۍ سره کوروالي اوکړي، نو په بالغه جينۍ باندې غسل واجب دی. او که هلک ددې قابله وي، چې

Scanned with CamScanner

کوروالې اوکړي یعني بلوغت ته نژدې وي. او شهوت ورته راځي نو غسل پرې واجبیږي. همدغه شان که بالغ سړی د نابالغې جینۍ سره کوروالې اوکړي نو په سړي باندې غسل واجبیږي. او که جینۍ مراهقه وي یعني بلوغت ته نژدې وي نو په دې هم غسل واجبیږي
افتاوی دیوبندص ۱۵۲!

## که د غسل نه روسته مني خارج شي نو ایا غسل واجب دی؟

که د چا مني نرۍ او نرمه وي.او د متیازو کولو نه روسته غسل اوکړي. او بیا بقیه مني خارج شي. نو ددې تفصیل په شامي کې داسې دې. که د متیازو کولو نه روسته انتشار باقي وي (یعني ذکر نې ولاړ وي)، او مني خارج شي . نو دویم غسل واجب دې. او که انتشار باقي نه وي او مني خارج شي. نو غسل واجب نه دې. ځکه چې د غسل د وجوب دپاره د مني په شهوت سره وتل ضروري دي. که څه هم د مني وتل په شهوت سره نه وي خو د ضرورت په مواقعو کې د مني په شهوت سره وتلو باندې فتوی ده احواله بالا ا

## دجنابت سمدستي د حیض راتلل

که یو سړي د خپلې ښځې سره کوروالې اوکړو او سحر ښځې ته حیض (د ښځو مخصوصه بیماري) شروع شوه. نو په دې ښځه باندې د جنابت غسل واجب نه دې. چې کله د حیض نه پاکه شي. نو غسل به کوي احواله بالاص ۱۵۴ا

## زنا، اغلام بدفعلي کولو سره هم غسل واجبیږي

په زنا کولو سره.او همدغه شان په لواطت کولو سره غسل واجبیږي.

Scanned with CamScanner

،نواطت د سرې د بل سرې سره به فعلې کولو نه وايې،

احواله بالا ص ۵۱۴،

## دخوب نه د بيداره کيدونه وروسته په مخوص اندام باندې لوندوالې ليدل

که يو سړې د خوب نه بيداره شو .او په خپل ذکر،شرمګاه، باندې ئې لوندوالې اوليدو. او ده ته يقين دې چې احتلام نه دې شوې يا ياد نه دې او دا لوندوالې د مذې ؤ. او د منې اثر په بدن بالکل نه ؤ. نو په دې صورت کې غسل واجب نه دې احواله بالا ص ۱۵۵،

## په خوب کې د ښځې سره کوروالې اوکړو خو انزال ئې اونشو، چې بيداره شو نو د متيازو نه روسته سپينې قطرې راغلې نو څه حکم لرې

زيد په خوب کې د يوې ښځې سره کوروالې اوکړو. خو تراوسه انزال نه دې شوې چې زيد بيداره شو. چې کله ئې متيازې کولې . نو روميې سپينې نرمې قطرې د شرمګاه نه خارجې شوې. نو په دې صورت کې په زيد غسل واجب نه دې احواله بالا ص ۱۵۵،

## په غسل کې د فرج خارج وينځل فرض دي

په فرض غسل کې د فرج خارج وينځل ضروري دي فرج داخل نه اوبه رسول ضروري نه دي. د فرج خارج او فرج داخل وضاحت مخکې تير شوې دې ،احسن الفتاوی ص ۳۷،

Scanned with CamScanner

## خناورو سره بدفعلي کولو کې بغير دانزال نه غسل نه واجبيږي

که چا د خناور سره بدفعلي اوکړه. او انزال ئي اوشو نو غسل واجب دې بغير د انزال نه غسل نه واجبيږي. اخير الفتاوی ص ۷۹]

## صغيره غير مشتهاتې سره کوروالې کولو باندې غسل نه واجبيږي ترکومه چې انزال نه وي شوې

که يو سړي د وړې جينۍ سره کوروالې اوکړو خو انزال ئې اونشو. نو غسل نه واجبيږي. ځکه چې دا د خناورو سره يا د مړې ښځې سره د بدفعلۍ کولو مشابه دې ]حواله بالا۷۹]

## په کومو صورتونو کې غسل واجبيږي

که سړي يا ښځې ته په خپل بدن يا کپړو باندې د بيداره کيدونه روسته لوندوالې معلوم شي. نو په ديکې ډير صورتونه دي. او په اوو ۷ صورتونو کې غسل فرض کيږي

يقين يا غالب گمان وي چې مني ده او احتلام ورته يا دوي

يقين دي چې مني ده او احتلام ورته يا دنه وي

يقين وي چې مذي ده او احتلام ورته ياد وي

شک وي چې مذي ده که مني. او احتلام ورته ياد وي

شک وي چې مني ده يا ودي. او احتلام ورته يا دوي

شک وي چې مذي ده که ودي. او احتلام ورته ياد وي

شک وي چې مذي ده که ودې او که مني. او احتلام يا دوي؛ نو په دې صورتونو کې غسل فرض دې

د بيداره کيدلو نه روسته په کپړو باندې لوندوالې اوويني. نو په

لاندینو صورتونو کې غسل فرض نه دی
یقین وي چې مذي ده او احتلام ورته یاد نه وي
شک وي چې مني ده که ودي او احتلام ورته یاد نه وي.
شک وي چې مذي ده که ودي او احتلام یاد نه وي.
یقین وي چې ودي ده او احتلام ورته یاد نه وي
شک وي چې مني ده که ودي او که مذي. او احتلام یاد نه وي.
البته په رومبني او دویم او پنځم صورت کې احتیاطي غسل واجب دی که څوک غسل اونکړي او مونځ وکړي نو سخته ګناه ده
[حواله بالا ص ۱۷]

## د انجکشن په ذریعه سره د ښځې په رحم کې ماده منویه رسولو سره غسل واجب کیږي که نه

د انجکشن په ذریعه سره که د ښځې په رحم کې مني واچول شي. نو که ښځې ته شهوت راشي. نو د غسل وجوب راجح دی او که بالکل شهوت نه وي نو غسل نه واجبیږي. خو په غسل کولو کې احتیاط دی که دا عمل ډاکټر یا خاوند اوکړي نو دشهوت راتلو زیات ګمان دي لهذا په دې صورت کې د غسل واجب کیدل راجح او معتبر دي خو د ډاکټر نه دا عمل کول قطعا حرام دي. د ضرورت په وخت کې بغیر د خاوند نه د بل چانه دا عمل نه دي کول پکار
[فتاوی رحیمیه ص ۳۵۴]

## چې د کوم سرې خصیې کټ وي د هغه حکم

دکوم سړي خصیې چې کټ شوي وي دده دذکر (شرمګاه) مخکنې حصه (سر) که د ښځې په فرج کې یا د سړي په روستنی حصه کې

داخله شي. نو غسل په دواړو واجب کيږي. که دواړه بالغه وي. وګرنه چې کوم بالغه وي په هغه واجب کیږي. [بهشتي ګوهر ص ۱۲]

## که د یو سړي د ذکر سرکټ شوي وي نو څه حکم ئې دې

که د یو سړي د خاص اندام سرکټ شوې وي نو د ذکر باقي حصه به د ذکر د پوره حصې سره اعتبار او اندازه اوکړې شي که دبقیه ذکر نه د خشفې په مقدار داخل شوه نو غسل واجب کيږي او که ددې نه کم وي نو نه واجب کيږي. [حواله بالا ص ۱۲]

## که یو سړې خپل شرمګاه په کپړه کې اونغاړي او داخله ئې کړي نو څه حکم ئې دې

که یوسړی خپل خاص اندام په کپړه وغیره کې اونغاړي او د ښځې په مخصوص اندام کې ئې داخل کړو نو که ګرم والې محسوس شي. نو غسل واجب دې خو احتیاط په دیکې دې چې که ګرموالې محسوس شي او که نشي . نو غسل فرض کیږي [حواله بالا ص ۱۲]

## که یو سړې د خپلې شرمګاه د سر د خشفې نه کمه حصه داخله کړي نو څه حکم لري

که یوسړي د شرمګاه د خشفې نه کمه حصه داخله کړه نو غسل نه واجبیږي. (خشفه د شرمګاه ګول سرته وائي). [حواله بالاص ۱۷]

## شرمګاه د ښځې په نوم کې داخلول

که یو سړی خپل خاص اندام د ښځې یادسړي په نوم کې داخل کړي، او مني خارج نشي. نو غسل نه واجب کيږي. [حواله بالاص ۱۸]

Scanned with CamScanner

## خپله مني په خوب کې لیدل

که یو سړي خپل مني په خوب کې اولیدله چې خارج کیږي او د مني وتلو لذت هم ورته محسوس شي،خو په کپړو کې لوندوالې یا بل څه اثر نه معلومږي نو غسل فرض نه دی (حواله بالا ص ۱۸)

## که ښځه په خپله شرمګاه کې ګوته داخله کړي

که یوې ښځې په خپله شرمګاه کې ګوته داخله کړه یا ډاکټر پکې داخله کړه.که دا کارد علاج دپاره وي.اوپه ښځه کې شهوت پیدانشي. نو صرف په ګوته یا لاس داخلولو سره غسل نه واجب کیږي او که ښځه د شهوت د غلبې د وجې نه د خوند حاصلولو دپاره دا کار اوکړي او خاوند پکې ګوته داخله کړي نو د بعض فقهاؤ په نز غسل واجب کیږي، اودې قول ته مختار هم ویلي شوي دي. لهذا په دې صورت کې ښه خبره داده . چې ښځه غسل اوکړي په دې کې احتیاط دی. او که د ښځې مني خارج شي نو بیا یقینا غسل واجب کیږي (فتاوی رحیمیه ص ۱۳۵)



# د حیض او نفاس بیان

## دحیض، نفاس او استحاضې وضاحت

[۱]حیض هغه وینه ده. چې داسې ښځې د رحم نه وځي. چې بیماره نه وي. نه ئي حمل وي او نه د نامیدۍ عمر ته رسیدلې وي،یعنې بالکل بوډۍ نه وي،

[۲]نفاس هغه وینې ته وایي. چې د اولاد د پیداکیدو نه وروسته خارجیږي.

[۳]استحاضه هغه وینه ده. چې د حیض په موده کې د دریو ورځو نه کمه یاد لسو ورځو نه زیاته راځي. یادنفاس په موده کې دڅلویښتو ورځو نه زیاته راځي.

## د حیض په حالت کې کوروالي کولو سره کفاره لازمیږي که نه

د حیض (مخصوص بیماري) په حالت کې د ښځې سره کوروالې کول حرام او ډیره لویه ګناه ده. په داسې کس باندې توبه کول لازم دي. او یو دینار یا نیم دینار صدقه کول مستحب دي.

[دارالعلوم دیوبند ص ۲۰۲]

## د حیض نه روسته د غسل نه مخکې جماع کول

که حیض په لسو ورځو ختم شي. نود غسل کولو نه مخکې کوروالي کول صحیح دي. که څه هم د غسل نه روسته ښه دي، او که د لسو ورځو نه کم خو د عادت موافق په شپږو یا اؤو ورځو کې وینه بنده شوه. نو بیا کوروالې کول هغه وخت صحیح دي چې ښځه

غسل اوکړي يا کم نه کم دومره وخت پرې تير شي. چې غسل اوکړي. کالي واچوي. او مونځ شروع کړي. يا په نورو الفاظو کې په داسې اوايو. چې د مونځ وخت د حيض د ختميدو نه روسته تير شي. او مونځ د ښځې په ذمه لازم شي. احواله بالا ص ۲۵۷]

## د ښځې د حيض په حالت کې ذکر کول

ښځې دپاره د حيض او نفاس په حالت کې وظيفه لوستل. تسبيح او تحليل ويل او د قران اياتونه د دعا په نيت سره ويل جايز دي
احواله بالا ص ۲۵۸]

## د بچي د پيداکيدو نه روسته تر کومه پورې کوروالې منع دی

چې د کومې ښځې بچې پيدا شي. د هغې د نفاس موده زياته نه زياته څلويښت ورځې ده. نو که يوې ښځې ته په دې څلويښت ورځو پورې کوروالې نشي کولې او د څلويښتو ورځو پرلبې کمه اوزياته وينه راځي. نوکوروالي ورسره تر څلويښتو نه روسته جايزه ده. او په نفاس کې کمه موده معلومه نه ده. نو که د يوې ښځې وينه د څلويښتو ورځو نه مخکې ختمه شوه. نو د غسل نه روسته ورسره کوروالې کول جايز دي. احواله بالاص ۲۵۹]

## د داسې بچي د ولادت نه روسته وينه راتلل ، چې د هغې اندامونه پوره نه وي جوړ شوي

د بعضو ښځو حمل د وخت نه مخکې ضايع کيږي نو که د بچي اندامونه مثلا کوتې. نو کان او ويښتان وغيره جوړ شوي وي. نو دا سقاط (حمل بريوتو) نه روسته راتلونکې وينه په نفاس کې شمار

کيږي. البته که تروسه يې اندامونه وي جوړ شوي نو بيا دا وينه په نفاس کې نه شمارکيږي اوس که په دې وينه باندې د حيض تعريف صادق راځي نو حيض به شمارل کيږي وګر نه استحاضه به وي [خيرالفتاوی ص ۱۴۰]

## د حايضې سره د مباشرت صورت

د حيض په حالت کې بغير د حائل (رکاوټ) نه د زنګنونو نه تر نامه پورې بدن نه نفع اوخوند اخستل جايز نه دي. او که په دې بدن باندې کپړه وي نو بيا کوروالي نه علاوه د لاس وغيره لګولو اجازت شته. [حواله بالا ص ۱۴۱]

## د مستحاضې حکم

هغه ښځه چې وخت په وخت ورته لږه لږه وينه راځي. او په مينځ کې د پينځلسو ورځو وقفه نه راځي. نو هغه ښځه به د خپل بيمارۍ تاريخ محفوظ کړي. ددې تاريخ نه لس ورځې روسته به د هغې د پاکۍ زمانه شروع کيږي. بيا ددې نه پينځلس ورځې روسته به د بل حيض وخت شمارکيږي په مينځ کې وينه راځي که نه راځي. به هر حالت کې به دا حساب وي ددې حساب مطابق کومه زمانه د پاکۍ وي د هغې مونځونه به قضاء راوړي. دا حکم د هغه ښځې دې چې د هغې د حيض ترتيب خراب شوې وي. او اوس ورته کله پينځه ورځې کله شپږ ورځې وينه راځي. مطلب دا چې د پينځلسو ورځو نه کمې وقفې سره وينه ورته راځي. [احسن الفتاوی ص ۷۳]

## د حيض په حالت کې احرام تړل

ښځه د حيض په حالت کې احرام تړلې شي. خو هغه دوه رکعته

مونځ به نه کوي او دحج یا عمرې نیت به اوکړي او تلبیه به او وایي.
[ستاسو مسائل او د هغې حل ۹۰]

## ښځې که د حیض د وجې نه طواف زیارت اونکړو

طواف زیارت د حج اهم رکن دې تر کومه پورې چې چا دا طواف نه وي کړې. نو نه خو حج پوره کیږي. او نه خاوند ښځه د یو بل دپاره حلالیږي. چې کومې ښځې ته د طواف زیارت په ورځو کې حیض شروع شي. هغې ته پکار دي چې ترپاکیدلو پورې د مکې مکرمې نه نه ځي. بلکې د پاکیدلو نه روسته طواف زیارت اوکړي. او بیا بیرته لاړه شي. که د دې د بیرته تلو تاریخ مقرر وي نو بدل دې یې کړي. که د طواف زیارت نه بغیر د مکې نه راغله نو حج یې نه کیږي او نه د خپل خاوند دپاره حلاصږي ترکومه چې بیرته لاړه نشي او طواف زیارت اونکړي او تر کومه پورې چې طواف زیارت اونکړي د احرام په حالت کې به وي خوچې کوم سړې د طواف زیارت بغیر د مکې نه راغلو هغه ته پکار دي چې د نوي احرام تړلو بغیر دې مکې ته لاړي، اوطواف زیارت دې اوکړي د تاخیر د وجې نه په ده باندې دم لازمیږي [حواله بالا ص ۱۴۸]

## د ختانیتو به میلاویدو سره روژه نه ماتیږي

که یو سړي په روژه کې د ورځې خپله ښځه ښکل کړه، یائې غاړه واخیستله یا ئې یوبل سره ختانین مس کړل، چې شهوت پیدا شو. بیا دواړه جدا شول نو روژه نه ماتیږي البته خوان سړي ته داسې کول ښه خبره نه ده [حواله بالا ص ۴۰۷]

Scanned with CamScanner

## د روژې په حالت کې ښکلول

د روژه دار دپاره خپلې ښځې ښکلول جايز دي خو د ځوان سړي دپاره داسې کول ښه نه دي، ځکه چې کيدې شي کوروالې ترې اوشي. [حواله بالا ص ۴۱۲]

## د ذکر په دخول سره روژه ماتيږي

د ذکر په فرج (د ښځې مخصوص اندام) کې داخلولو سره روژه ماتيږي مني خارج شي او که نه . قضا او کفاره دواړه لازميږي.
[حواله بالا ص ۴۱۷]

## په لاس سره مني خارجول مفسد صوم دي

په لاس سره مني خارجولوسره روژه ماتيږي او قضا لازمه ده، (البته داکار ډير قبيح عمل دې او لويه ګناه لري). [حواله بالا]

## د ښکلولو د وجې نه انزال کيدل

که چا د روژې په حالت کې ښځه ښکل کړه، او مني ئې خارج شوله . نو روژه ئې ماته شوه او صرف قضا پرې لازمه ده.
[حواله بالا ص ۴۲۰]

## که روژه دار قصدا کوروالې اوکړي

که د روژې په مياشت کې روژه دار قصدا د ورځې کوروالې اوکړي، نو قضا او کفاره دواړه لازميږي. [حواله بالا ص ۴۱۹]

Scanned with CamScanner

## د ښځې سره کیناستلو باندې انزال کېدل

که یو سړی روژه دار د رمضان په میاشت کې د خپلې ښځې سره کیناستو او د کمزورۍ د وجې نه ئي مني خارجه شوه نو صرف قضا به کوي احواله بالا جلد ۲ ص ۴۲۲]

## په بدفعلۍ کولو سره قضا او کفاره دواړه لازمیږي

که چا په روژه کې د هلک سره لواطت (بدفعلي) اوکړه او انزال هم اوشو نو قضا او کفاره دواړه لازمیږي احواله بالاجلد ۲ ص ۴۳۲]

## په لواطت کې که صرف حشفه غایبه شي، نو څه حکم دی

په لواطت (بدفعلي) کې که صرف د شرمګاه سر غایب شي. او انزال اونشي. نو بیا هم قضا او کفاره دواړه لازم دي

احواله بالا ج ۲ ص ۴۲۸]

## د څناور سره بدفعلي کول

څناور سره بدفعلي کولو باندې صرف قضا ده [خیرالفتاوی ج ۲ ص ۲۵]

## د روژې په حالت کې په فرج کې دواني لګول

د روژې په حالت کې د ورځې د ښځې په خپله شرمګاه کې مرهم وغیره لګول جایز دي روژه نه ماتیږي چې په شرمګاه کې زخم دی البته په فرج داخل کې دوایي رسیدلو سره روژه ماتیږي

احواله بالا ج ۴ ص ۴۱۸]

## مذي وتلو سره روژه نه ماتيږي

که په روژه کې د چاه نه مذي خارجه شي نو روژه نه ماتيږي

[ج۴ ص ۵۱۴]

## که د روژې خيال نه وي او کوروالې اوکړي ددې نه روستو صبح صادق شي نو دروژې څه حکم دی

چانه چې د روژې څه خيال نه وُ يائې دا خيال وُ چې شپه لا پاتې ده او جماع ئې شروع کړه يائې خوړل څکل شروع کړل او ددې روسته چې څنګه د روژې خيال شو ورته او چې څنګه صبح صادق کيدو سمدسي د کوروالي نه جدا شو. يائې نوړه د خپلې خولې نه اوغورځوله. که څه هم مني د جدا کيدو نه روسته خارج شول نو روژه نه ماتيږي او دا انزال به د احتلام په حکم کې وي.

[حواله بالا ص ۱۰۲]

## په روژه کې د ښځې شونډې په خوله کې نيول

د ښځې وغيره شونډې د روژې په حالت کې په خوله کې نيول، او مباشرت فاحشه ، دښځې او سړي شرمګاه په خپلو کې ميلاؤ شي بغير ددخول نه، په هر حال کې مکروه دي. برابره خبره ده چې دانزال يا جماع يره وي که نه وي [حواله بالاص ۱۰۲]

## که په روژه کې په هيره سره جماع اوشي

که چا په روژه کې په هيره سره کوروالې اوکړو نو روژه يې نه ماتيږي [نورالايضاح ۱۴۰]

Scanned with CamScanner

## د خپلې ښځې توکانړي تيرول

د خپلې ښځې يا ملګري توکانړي تيرولو سره روژه ماتيږي . قضاو کفاره دواړه لازميږي احواله بالا ص ۱۴۳]

## که چا روژه کې مړي يا خناورسره جماع اوکړه

که چا د مړي سره جماع اوکړه . يا ئې خپل ذکر خيته پورې اومګلو يا ئې څوک ښکل کړو . او انزال ئې اوشو . نو صرف قضا لازميږي [حواله بالاص ۱۴۲]

## د ښځې د روژې په حالت کې په شونډو سرخي لګول

ښځې ته د روژې په حالت کې په شونډو سرخي لګول جايز دي. البته که خولې ته د تلو خطره وي نو بيا مکروه دي

[احسن الفتاوی ج ۴ ص ۴۳۴]

## دحايضې په رمضان کې خوړل څکل

که کومې ښځې د حيض د وجې نه روژه نه وه نيولې نو خوړل څکل ورته جايز دي خو د نورو مخامخ دې يې نه خوري. او که د ورځې په څه حصه کې حيض پاکه شوه. نو د ورځې بقيه حصه د روژه دارو په شان تيرول واجب دي. [حواله بالاج ۴ ص ۴۳۸]

## د کفارې په روژوکې که حيض شروع شي

که ښځې د کفارې روژې نيول شروع کړل او په مينځ کې ورته حيض راغلو. نو د حيض راتلل په کفارې څه اثر نه کوي د حيض ختميدلو نه سمدستي روسته دې روژې نيول شروع کړي. دغه شان دې بيا له

پسې شپېته روژې اونیسي. که د حیض ختمیدو نه روسته یې یوه ورځ هم ناغه اوکړله. نو بیا به د شروع نه شپېته روژې نیسي.
[حواله بالا ص ۵۵۲]

## که ښځې په شرمګاه کې د ګوتې داخلول مفسدصوم اوګڼړل او خوراک څکاک یې اوکړو

په فرج (شرمګاه) کې د وچې ګوتې داخلول روژه نه ماتوي. البته ګوته وچه وي که لمده وي. چې په فرج کې یې داخله کړي او بیا پوره ګوته یا څه حصه بهر کړي او بیایې دننه کړي نوروژه ماتیږي صرف قضا به کوي ددې روسته خوړلو څکلو باندې هم کفاره نشته.
[حواله بالا]

## د بچي پیداکیدو د تکلیف د وجې نه روژه ماتول

که یوې ښځې ته د بچي د پیداکیدو تکلیف شروع شي نو که په دې صورت کې د روژه نیولو نه ښځې یا بچي ته د نقصان غالب ګمان وي نو روژه ماتول جائز دي صرف قضا واجب ده. د داسې خطرې نه علاوه روژه ماتول ګناه ده. کفاره به لازمیږي البته که په همدغې ورځ دنمر ډوبیدو نه مخکې بچې پیدا شونو کفاره به ساقطه شي. [حواله بالا ج ص ۴۵۲]

## په دوائي سره حیض بندول او روژه نیول

که ښځې دوائي اوخوړه او حیض یې بند شو. او دغه شان یې د رمضان پوره روژې اونیوې نو صحیح دي. خکه چې کله حیض

شروع نه وي نو روژه صحيح ده. شرعا په داسې کولو باندې پابندي نشه. خو شرط دادی چې که دا عمل د ښځې د صحت دپاره مضر نه وي نو جائز دې [ستاسو مسئايل او د هغې حل ج۳ ص ۵۲]



# دنکاح بیان

## دنکاح دپاره ایجاب او قبول یو خل کافي دي

یو خل په ایجاب او قبول سره نکاح کیږي درې خله ویل د پختګی او مضبوطوالي دپاره دي. چې چا اویل چې خپله جینئ مې درکړه دیته ایجاب وائي. او چې بل اوائي ما قبوله کړه دیته قبول وائي.

استاسو مسائل او د هغی حل

## د ګواهانو نه بغیر نکاح نه کیږي

په نکاح کې دوه ګواهان ضروري دي چې د هغوی مخامخ ایجاب او قبول اوشي. که ګواهان موجود نه وي نو نکاح صحیح نه ده.

احواله بالا ج۳ ص ۴۲۰

## یو سړی د هلک او جینئ دواړو له طرفه ایجاب او قبول کولې شي

چې کوم سړی یا هلک او جینئ دواړو له طرفه وکیل یا ولي وي که هغه د ګواهانو په مخکې اوائي چې ما فلانئ جینئ فلانې هلک ته ورکړه. نو نکاح صحیح ده. احواله بالا ج۴ ص ۱۵۴

## د نابالغه جینئ او هلک نکاح صحیح ده

د نابالغه هلک او جینئ نکاح د هغوی د ولي په ایجاب او قبول سره صحیح ده او چې بالغ شي. نو که نکاح پلار یا نیکه کړې وي نو دوی ته د رد کولو اختیار هم نشته. احواله بالاج۵ ص ۱۵۷

Scanned with CamScanner

## دبالغ کیدو سم سمدستي د نکاح د ردکولو اختيار

په نابالغې کې نکاح کول نه دي پکار، بلکې د دوی د بلوغت نه روسته ددوی د رجحان خيال ساتل پکار دي. خو بعض وخت مور او پلار د شفقت د وجې نه په نابالغې کې نکاح کوي څکه شريعت دغه نکاح جايزګرځولې ده. تفصيل ئې دادې چې د پلار او نيکه نه جينۍ او هلک په نابالغې کې د کړي شوي نکاح د رد کولو اختيار نشته البته د عدم موافقت په صورت کې هلک طلاق ورکولې شي. او جينۍ خلع کولې شي.اوکه د نابالغه نکاح د پلار او نيکه نه علاوه بل چا کړې وي. نو بيا د بلوغت نه سمدستي روسته د ردکولو اختيار شته. د رد کولو تفصيل دادې چې په کوم مجلس کې دوی بالغه شي. به هم هغه مجلس کې به سمدستي اوائي چې دا نکاح نه منو. او که په دې مجس کې يې رد نه کړو. د مجلس تر ختميدو پورې خاموشه ؤ. نو نکاخ به پوه شي. بيا روسته د ردکولو اختيار نيشته [حواله بالا]

## د پيرۍ سره نکاح صحيح دې که نه

د انسان د جينيه (پيرۍ) سره نکاح شرعا صحيح نه دي

[فتاوٰی ديوبند ج۷ ص ۱۵۱

## چې په کومه ښځه پيريان وي د هغې سره جماع

که د چا په ښځه باندې جنيه (پيرۍ) وي او دغه سړی په دغه حالت کې ورسره جماع کوي چې په ښځه يې پيرۍ راغلې وي. نو دا کوروالې جايز دی. او دا کوروالې د جينۍ (پيرۍ) سره زنا نه ده. [حواله بالا]

## د داسې ښځې سره نکاح کول چې سينې يې ښکاره راوتلي نه وي

خنثی (هيجړا) که مشکل وي نو نکاح ورسره صحيح نه دې، او که غير مشکل وي نو که سړی وي نو د ښځې سره اوکه ښځه وي نو د سړي سره يې نکاح جايز ده. (حواله بالا)

## چې د کومې ښځې په شرمګاه کې دخول نه کيږي

چې د کومې ښځې په رحم کې هډوکې وي او جماع ورسره نه شي کيدلې نو نکاح ورسره جايز دي. (حواله بالا ج۷ ص ۱۵۳)

## که د يوې جينۍ د بکارت پرده په ټوپ وهلو سره ختم شي نو څه حکم يې دی

که د يوې جينۍ د بکارت پرده په ټوپ وهلو سره يازيات حيض راتلو سره يا د زخم د وجې نه يا ډير وخت په کور کيناستلو د وجې نه ختم شوې وي. نو په دې ټولو صورتونو کې به دغه جينۍ د باکرې په حکم کې وي ددې د نکاح د اجازت په وخت کې خاموشه کيدل اجازت شميرل کيږي، د خبرو ضرورت يې نشته

(حواله بالا ص ۱۳۱۴)

## په دوه ښځو کې د انصاف طريقه

که د چا دوه يا ډيرې ښځې وي برابره خبره ده. چې دواړه باکرې وي (يعني نکاح يوځل هم مخکې چرته نه وي شوې) يا ثيبې وي. يا يوه باکره وي او بله ثيبه وي، نو په دوی کې په انصاف سره تقسيم واجب دی، د شپې تيرولو په مقدار کې خاوند ته اختيار دی، که

Scanned with CamScanner

غواړي نو يوه يوه شپه دې مقرره کړي يا دوه دوه يادرې درې يا که
ښځې دينه په زياتو شپو راضي وي نو ګناه پکې نشته. اودا برابري
او انصاف صرف په شپه تيرولو کې دې په کوروالي کې نه دی
[هدايه ص ۳۴۹]

## د داسې سړي سره نکاح چې نامرد وي څه حکم لري

که يوې ښځې د يو سړي سره نکاح اوکړه. خو داسړی عنين (نامرد)
ؤ. او دې ښځې د جدا والي مطالبه اوکړه. نو دوخت حاکم او بادشاه
به خاوند ته ديو کال مهلت د علاج دپاره ورکړي. ددې کال ابتدا به
د هغه وخت نه شروع کيږي چې کله ښځې مقدمه پيش کړې وي نو
که داسړی په يو کال کې په علاج سره ياد الله تعالى په فضل سره د
جماع قابله شو. او د ښځې سره ئي کوروالي اوکړو. نو څه خبره
نشته. او که د يو کال نه روسته هم د جماع لائق نه ؤ. نو د وخت
قاضي به د ښځي په مطالبې سره په دواړو کې تفريق (جداوالې)
اوکړي. او دا تفريق به طلاق بائن شمارل کيږي. او که دې سړي د
خپلې ښځې سره خلوت صحيحه نه وي کړې. نو تفريق په صورت
کې به نيم مهر لازميږي. د يو کال مهلت ورکول په هغه صورت کې
دي. چې خاوند ددې خبرې اقرار کړی وي چې ما جماع نه ده کړې.
او که په خاوند او ښځه کې اختلاف وي چې خاوند وائي چې ما
جماع کړې ده او ښځه انکار کوي. نو که ښځه ثيبه نه وي نو د
خاوند خبره به د قسم سره معتبره وي بيا که خاوند قسم اوخوړو. نو
د ښځې حق به باطل شي. او که خاوند انکار اوکړو، نو د علاج
دپاره به يو کال مهلت ورکول کيږي. او که ښځه باکره وي نو نورې
ښځې به يې اوګوري که ښځو اوويل چې باکره ده. نو خاوند ته به

يو كال مهلت وركړې شي. او كه ښځو اوويل چې ثيبه ده، نو د
خاوند نه به قسم اخستې شي. ځكه چې كيدلې شي چې بكارت يې
د بل څه وجې نه ختم شوې وي. ددې وجې نه ددې د شهادت سره د
قسم شرط لګول شوې دي. بيا كه خاوند قسم اوخوړو نو د ښځې
دپاره څه حق نشته. او كه انكار نې اوكړو. نو يو كال مهلت به
وركول كيږي اهدايه ج١ ص ۴۲۱ا

## د نامرد تعريف

په فتاوي قاضي خان كې دي چې عنين (نامرد) هغه سړى دى چې
دآله (ذكر) د موجود كيدو باوجود په ښځو باندي قادره نه وي. په
محيط كې دي چې عنين (نامرد) هغه دى چې آله تناسل ئي دومره
وړه وي چې د ښځې په فرج كې داخليدل يې ممكن نه وي
په جواهر كې دي چې نامرد هغه دى چې په آله تناسل كې يې حركت
نه وي. لكه ګوته. چې په بدن كې اولګولې شي. هغه نه
راغونډيګي او نه خواريږي. په عيني د هدايه په شرح كې د نامرد
شناخت دا بيان شوى دى چې په يو لوښي كې دې يخې اوبه واچولې
شي او عنين دې پكې كنولې شي. كه دده آله تناسل (شرمګاه)
راغونډ شو. نو داسړى عنين نه دى. او كه راغونډ نه شي. بلكه په
اولنې حالت باندې باقي پاتې شي. نو دا عنين (نامرد) دى
االشرف الهدايه ج ۵ ص ۱۸۲ا

## كه د خاوند شرمګاه كټ شوې وي نو څه حكم لري

كه د خاوند شرمګاه كټ شوې وي او ښځې د جدايې مطالبه اوكړه،

Scanned with CamScanner

نو قاضي به د مهلت ورکولو نه بغير په دواړو کې تفريق اوکړي
اهدايه ص ۴۲۱]

## که ښځې د خصي سره نکاح اوکړه

که ښځې د خصي سره نکاح اوکړه. نو قاضي به مهلت ورکړي يو کال. لکه څرنګه چې نامرد ته ورکولې شي. ځکه چې په ديکې د جماع کولو کې اميد شته. ځکه چې آله تناسل يې شته.
اهدايه ص ۴۲۰]

## د کوروالي کولو طريقه

شريعت د ښځې د بدن نه د هر قسم فائدې اخيستلو اجازت ورکړی دی. البته لواطت يعني په روسته طرف کې صحبت کول حرام دي. ددې وجې نه صحبت صرف په مخکې طرف کې جائز دی. او دی دپاره چې کومه طريقه هم اختيار کړې شي. ممانعت نشته. البته دوه طريقې ښې معلوميږي

اول طريقه: کومه چې په هر يو ساه لرونکي کې فطري ده. چې سړی بره وي او ښځه به لاندې وي. په قران کې هم دې طريقه ته اشاره شويده

د الله تعالی ارشاد دی (فلما تغشاها حملت حملا خفيفا) يعنی چې کله سړي ښځه پټه کړه. نو ښځې ته سپک حمل جوړ شو. او ددې صورت هم دغه دی چې سړی بره وي او ښځه لاندې وي

دويمه طريقه: ددې متعلق په حديث کې ارشاد دی (اذا قعد بين شعبها الاربع ثم جهدها) يعني چې کله سړی د فرج (شرمګاه) په

څلورو طرفونو کې کيني، بيا په مشقت کې واچوي ښځه ، د شعب اربعه نه څه مراد دي، په ديکې راجح قول دادی چې ددې نه د ښځې د کوناتو دوه طرفونه او د سينو دوه طرفونه مراد دي. اوددې په مينځ کې کيناستل هغه وخت کې کيږي چې کله ښځه پرته وي او دډې ښپې اوچتې کړې شي. اوکوروالې وشي. دا طريقه د حمل کيدو دپاره هم مفيده ده خکه چې رحم د ذکر مقابل راشي.



# د مهر مسائل

## د مهر مؤجل او مهرمعجل تعريف

مهر مؤجل هغه دی چې د اداکول وخت ئې مقرر وي او د کوم مهر چې وخت مقرر نه وي بلکې ادائګي ئي سمدستي يا د ښځې په مطالبه سره واجب وي. هغه ته مهر معجل وائي. ددې مطالبه چې کله اوغواړي. کولې شي. [اساسي مسئلې او د هغی حل ج۵ ص ۱۴۸]

## مهر د خاوند په ذمه قرض دی

د ښځې مهر د خاوند په ذمه باندې قرض دې. برابره خبره ده، چې د نکاح څومره وخت هم شوې وي هغه واجب الادا دې، نو که خاوند مړ شو او څه سامان يې پريښودو ، نودا قرض به ددې نه اداکيږي. او که څه ترې پاتې نشي،نود وارثانوپه ذمه باندي اداکول لازم نه دي بلکه خاوند به پخپله ګناهګار وي او په ورځ دقيامت به يې اداکوي. [حواله باله]

## که ښځه رتقا وي يعنې شرمګاه يې تنګه وي نو مهر به واجب کيږي که نه؟

که چا د داسې ښځې سره نکاح اوکړه چې د شرمګاه سوري يې دومره تنګ و چې جماع پکې نه کيدله برابره خبره ده. چې د هډوکي د وجې نه وي يا د بل څه سختې غوښې د وجې نه وي نو د داسې ښځې سره په خلوت کولو سره مهر نه لازميږي

(فتاوي محمودیه ج۱۱ ص۱۹۷)

## د مهر ورکولو نه روسته که ښځه خنثی مشکل وي نو مهر واپس اخيستې شي که نه؟

که يو سړي د يوې ښځې سره نکاح اوکړه او مهر يې هم ورکړو. دخلوت نه روسته پته اولګيده چې دا خو خنثی مشکل (هيجړا) ده نو د خنثی مشکل سره نکاح صحيح نه دې. په درمختار کې ددې تصريح موجوده ده. نو چې کله نکاح صحيح نه دې نو مهر نه واجبيږي. او چې خاوند څه ورکړي دي هغه واپس اخيستې شي

ادارالعلوم ديوبند جلد۹ ص۲۲۵

## د خنثی مشکل تعريف

چې کله د ماشوم فرج (د ښځې شرمګاه) او ذکر (د سړي شرمګاه) دواړه وي . نو ديته خنثی مشکل وايي. که دذکر نه بول کوي نو هلک دی. او که د فرج نه بول کوي نو جينۍ ده. او که د دواړو نه بول کوي. اوبول د يوې لارې نه اول راوځي نو دغه لارې ته به منسوب کيږي. يعني که د ذکر نه اول اوځي نو هلک به وي او که د

فرج نه اول راوځي نو جينۍ به وي، او چي کله خنثی بالغ شي اوږيره يې ښکاره شي ياکوروالې اوکړي نو سړي به حسابيږي، او که د ښځو په شان سينې يې راښکاره شوې يا يې په سينو کې شوده راغلل يا حيض ورته راغلو. ياپې حمل شو ياصحبت ورسره د فرج د لارې ممکن وي نو ښځه به حسابيږي او که ددې نر اوښځې د علامونه يوه علامه هم ښکاره نشي. نو دا بيا خنثی مشکل دی [قدوري ص۱۲۴]

## د خنثی مشکل غسل او کفن

خنثی مشکل ته به غسل نشي ورکولې بلکې تيمم به ورته کولې شي. [فتاوی رحيميه ج۳ ص ۱۰۱]



# د رضاعت مسئلې

## د ښځې د شيدو نه حرمت کله ثابتيږي

د ښځې د پيو نه حرمت هلته ثابتيږي چې کله ماشوم د دوو کالو په عمر کې ددې پی څکلي وي احواله بالاج۵ ص ۱۱۸)

## ماشوم او ماشومې ته ترخوکالو پورې د پيو ورکولو حکم دی؟

ماشوم او ماشومې ته تر دوه کالو پورې د پيو ورکولو حکم دی. ددينه مخکې هم د پيونه جدا کول جايز دي که څه مصلحت او ضرورت وي. احواله بالاج۵ ص۱۱۹)

## دبوډۍ ښځې ماشوم ته پی ورکول

چې کومو ښځو ته د ډير عمر د وجې نه پی نه راځي. او د ماشومانو دخاموش کولو دپاره يو ماشوم په جولۍ کې واخلي ، او په خوله کې ورله سينه ورکړي، نو ددې نه دا ماشوم د هغې رضاعي بچې نه جوړيږي، ځکه چې د رضاعت شرط دادی چې شيدې ورکړي او ددې ښځې نه د شيدو راوتو امکان نشته. احواله بالاج۵ ص ۱۲۲)

## په دوائي کې شيدې اچول

که په دوائي کې ښځې خپلې شيدې ميلاؤ کړلې او شيدې په دوائي باندې غالب او ډيروؤ او د دوه کالونه د کم عمر ماشوم ته يې ورکړل. نو رضاعت به ثابتيږي او که دوائي زياته وي او شيدې

Scanned with CamScanner

کمې وي نو رضاعت به نه ثابتیږي او که دواړه برابر وي نو بیا به هم رضاعت ثابتیږي. احواله بالا جلد ۵ ص ۱۲۳]

## د لړو شیدو نه هم رضاعت ثابتیږي

د رضاعت په موده کې که یوه ښځه لږ غوندې پی هم ماشوم ته ورکړي او خیټې (نس) ته ئې لاړشي نو حرمت رضاعت به ثابت شي.
ادارالعلوم دیوبند جلد ۸ ص ۳۷۷]

## یوې ماشومې په خوله کې سینه واخیسته خو د پیو څکلو یقین نشته

په شک سره حرمت رضاعت نه ثابتیږي لهذا په مذکوره صورت کې به حرمت نه ثابتیږي. احواله بالا جلدج۸ ص ۳۸۲]

## د خپلې ښځې شیدې څکل څه حکم لري

د خپلې ښځې په شیدو څکلو سره ښځه په خاوند نه حرامیږي، البته د خاوند دپاره د خپلې ښځې شیدې څکل حرام دي.
احواله بالا جلد۸ ص ۳۹۳]

## په پوزه او غوږ کې د شیدواچولو سره د رضاعت حکم

د څه عذر او ضرورت نه بغیر د ښځې پی په پوزه او غوږ کې اچول جایز نه دي البته د دوائي په توګه یې استعمال جایز دې چې کله یې یو مسلمان ماهره ډاکټر او حکیم دا دوائي تجویز کړي او ددینه علاوه بله څه دوائي مفیده نه وي او د رضاعت په موده کې په پوزه او خوله کې پیو اچولو سره رضاعت ثابتیږي البته په غوږ کې اچولو سره نه ثابتیږي. [خیرالفتاوی جلد ۴صفحه ۴۸۲]

Scanned with CamScanner

## د حرمت دپاره د رضاعت وخت يوکيدل ضروري دي

که جينۍ او هلک پۍ څکلي وي يا هلک لس کاله مخکې څکلي وي او جينۍ لس کاله روسته، نو بيا هم حرمت رضاعت ثابتيږي د اول او اخر اعتبار نشته. [حواله بالا جلد ۴ ص ۴۸۲]

## د مرې ښځې پيو څکلو سره حرمت ثابتيږي

که يوې ماشومې ته د مرې ښځي پۍ ورکړل شي. نوددې نه حرمت رضاعت ثابتيږي. [حواله بالا جلد ۸ ص ۴۸۷]

## د مجبورۍ د وجې نه د دوه کالونه زيات پۍ ورکول

که عذراو سخت ضرورت وي، نوتر دوه نيمو کالو پوري پۍ ورکولې شي، ددينه زيات قطعا جائز نه دي.
[حواله بالا جلد ۴ ص ۱۴۹۵]

## چې چا پۍ څکلي وي همدغه به حراميږي

چې کوم هلک د بلې ښځې پۍ څکلي وي نو ددې ښځې په بچو باندې همدغه حراميږي ددې هلک نورو رونړه او خويندې ددې ښځې په بچونه حراميږي. [امدادالاحکام جلد ۲ ص ۸۴۴]

## د ورو اغږلو په وخت کې په اوږو کې د پيو پريوتل

که يوې ښځې اوره اغږل او په اوږو کې د اوبو سره ددې د سينې نه څه پۍ پريوتول او په ورو کې ميلاؤ شول. نوددې اوړو د روټۍ خوړلو نه حرمت نه ثابتيږي او نه رضاعت ثابتيږي، البته پۍ د

Scanned with CamScanner

انسان جز دي چې ددې استعمال قصدا جائز نه دې. نو دداسې روټۍ نه خان ساتل بهتر دي خوداپې په پخولو کې سوزيګي او لرې شي دي ددې وجې نه پرهيزکول واجب نه دي او ددې روټۍ خوړل جائز دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۸۵۳]

## د رضاعي خور جوړيدلو درې صورتونه دي

چې جينۍ ستاسو د مور پۍ څکلي وي په دې صورت کې دغه جينۍ ستا د مور رضاعي لور او ستا دټولو رونړو خويندو رضاعي خور جوړيږي. لهذا ستا د ورور نکاح هم ددې جينۍ سره صحيح نه دې. تا د يو جينۍ د مور پۍ اوڅکل دې صورت کې ددې جينۍ مور ستا رضاعي مور شوه. او ددې اولاد ستا رضاعي رونړه او خويندې شول. ستانکاح ددې ښځې د يوې لور سره هم جايز نه دې. البته ستا د حقيقي رونړو نکاح ددې ښځې د لوريانو سره جائز ده.

تا او يوې بلې جينۍ د بلې ښځې پۍ اوڅکل په دې صورت کې هغه ښځه ستاسو دواړو رضاعي مور شوه. او تاسو دواړه رضاعي رور او خور يئ. ستا دحقيقي رونړو نکاح ددې جينۍ سره جائز دې.

## که باکرې جينۍ ماشومې ته پۍ ورکړل

که د باکرې د سينې نه پۍ ووتل او يوماشوم اوڅکل، نوددينه حرمت رضاعت ثابتيږي. [هدايه ص ۳۵۲]

## که دسړي د سينو نه پۍ راووتل

که د سړي د سينې نه پۍ خارج شول او ماشوم اوڅکل نو ددې پيو نه رضاعت نه ثابتيږي. [هدايه ص ۳۵۲]

Scanned with CamScanner

# د طلاقو بیان

## د طلاق ورکولو شرعي طریقه

د طلاق ورکولو درې طریقې دي، یو صورت دادی چې کله ښځه د حیض نه پاکه شي، نو د جماع کولو بغیر ورته یو طلاق رجعي ورکول. او بیا ورته رجوع نه کول، تردې پورې چې عدت یې پوره شي، په دې صورت کې په عدت کې د رجوع کولو اجازت شته او چې عدت تیر شي نو که دا ښځه قبلول غواړي نو دوباره نکاح به کوي او دا د ټولو نه بهتره طریقه ده.

### دویمه طریقه

چې په جدا جدا درې طهرونو کې درې طلاقه ورکړي دا صورت ډیر بهتر نه دې او د شرعي حلالې نه بغیر آینده نکاح کول نه صحیح کیګي، د حلالې نه مراد دادی چې ښځه مکمل عدت تیر کړي بیا د بل سړي سره نکاح اوکړي او د بل خاوند سره شپه تیره کړي او هغه وسره کوروالې اوکړي بیا هغه طلاق ورکړي.

### دریمه طریقه

د طلاق بدعت دې، چې ددې ډیر صورتونه دي، مثلا ښځې ته د حیض په حالت کې طلاق ورکول یا په داسې طهر کې طلاق ورکول چې کوروالې یې پکې کړې وي همدغه شان په یو لفظ سره یا په یو مجلس کې یا په یو طهر کې درې طلاقه ورکول دیته طلاق بدعت

واني، ددې حکم دادی چې په دې طریقې سره د طلاقو ورکول ګناه ده، خو طلاق واقع کیږي که یو طلاق یې ورکړو نو یوه به واقع شي که دوه یې ورکړل نو دوه به واقع شي او که درې یې ورکړل نو درې به واقع شي. برابره خبره ده چې په یو لفظ سره وي که په یو مجلس کې وي او که په یو طهر کې وي. استاسو مسئلې او هغې حل ص ۱۲۱۵

## د شرعي حلالې وضاحت

په قرآن کریم کې ارشاد دی که خاوند ښځې ته دریم طلاق هم ورکړي نو دا ښځه د خاوند دپاره نه حلالیږي تردې چې دا ښځه (د عدت نه روسته) دبل چاسره نکاح (صحیح) اوکړي او د نکاح نه روسته دغه بل خاوند ورسره جماع اوکړي بیا مړ شي. یا طلاق ورکړي او ددې عدت تیر شي. نو بیا دغه ښځه د ړومبي خاوند دپاره حلالیږي چې نکاح ورسره اوکړي او د دریو طلاقو نه روسته د ښځې د چاسره په دې شرط باندې نکاح کول چې هغه د جماع نه روسته طلاق ورکړي. دا شرط باطل دې او په حدیث کې په داسې حلاله کونکو باندې لعنت ویلې شوې دې. بیا هم د ملعون کیدو باوجود که دا دویم خاوند د جماع کولو نه روسته طلاق ورکړي، نو د عدت نه روسته به ښځه د ړومبي خاوند دپاره حلاله شي او که هغه د جماع نه بغیر طلاق ورکړل نو بیا د ړومني خاوند دپاره نه حلالیږي.

او که د دوهم خاوند سره د نکاح کولو په وخت کې یې داشرط نه وي لګولې چې د جماع نه روسته به طلاق ورکوي خو د هغې خاوند خپل خیال دا وي چې د جماع نه روسته به طلاق ورکوي نو دا صورت موجب لعنت نه دي. ا حواله بالا جلد ج۵ ص ۲۳۳ا

## د طلاق رجعي طلاق بائن او طلاق مغلظ تعریف

طلاق په درې قسمه دي:
طلاق رجعي خاوند خپلې ښځې ته یو خل یا دوه خل په صافه الفاظو کې طلاق ورکړي (یعني لفظ طلاق استعمال کړي) او څه بل لفظ ورسره استعمال نه کړي د طلاق رجعي حکم دادی چې د عدت ترختمیدلو پورې ښځه د خاوند په نکاح کې وي او خاوند ته دا حق حاصل وي. چې په عدت کې دننه دننه کله هم اوغواړي نو خپلې ښځې ته رجوع کولې شي. او د رجوع طریقه داده چې یا خو په ژبه سره اوایي چې ما طلاق واپس واخیستل. یا ښځې ته لاس ولګوي دویم خل نکاح ضروري نه دې خو که عدت تیر شو. اوخاوند په خپل قول یا فعل سره رجوع اونکړه. نو اوس ددواړو رشته ختمه شوه. او ښځه دبل چاسره خپل نکاح کولې شي.او که د دواړو په مینځ کې مصالحت اوشي. نو دوهم خل خپل نکاح کولې شي.
طلاق بائن: طلاق بائن په کنایه (ګول مول) الفاظو کې طلاق ورکول . یا د طلاقوسره د داسې صفت استعمالول چې د هغې نه د سختې اظهار کیږي مثلا داسې اواې ماتاتـه سخت طلاق یا اوګد طلاق درکه . د طلاق بائن حکم دادی چې ښځه سمدستي د نکاح نه اوځي او خاوند ته د رجوع حق نه وي البته په عدت کې او د عدت نه روسته دوهم خل نکاح کولې شي.
دریم طلاق مغلظ: درې طلاقه په یو ځای ورکول. په دې صورت کې ښځه همیشه دپاره حرامیږي، او د شرعي حلالې نه بغیر دوهم نکاح هم نشي کولې احواله بالا جلدج۵ ص ۳۸۲]

## لفظ طلاق په لفظ د (ت) سره ليکل

که چا د طلاق په ځای تلاق او ليکل نو هم طلاق واقع کيږي.
[حواله بالا جلد ج۵ ص ۳۸۲]

## د نشې په حالت کې طلاق ورکول

د نشې په حالت کې طلاق واقع کيږي. [حواله بالا جلد ۵ ص ۳۸۵]

## د ليوني له طرفه د هغه رور طلاق ورکولې شي؟

د ليوني له طرفه بل څوک طلاق نشي ورکولې. [حواله بالاج۵ ص ۳۸۵]

## د بې هوشۍ او خوب په حالت کې طلاق ورکول

د بې هوشۍ او خوب په حالت کې ورکړې شوې طلاق نه واقع کيږي. [حواله بالا جلد ۵ ص ۳۸۶]
د طلاقو سره انشاء الله استعمالو سره طلاق نه واقع کيږي. [حواله بالا جلد ج۵ ص ۳۸۸]



# د ظهار تعریف او احکام

که یو سړی خپلې ښځې ته داسې ووايي چې ته ما د پاره د مور یا خور په شان یې. نو دیته ظهار وايي د ظهار حکم دادی چې دې لفظ سره طلاق نه واقع کیږي خو د کفارې ورکولو نه بغیر خپلې ښځې سره میلاویدل حرام دي. او کفاره مسلسل دوه میاشتې روژې نیول. او که طاقت یې نه وي نو شپیتو مسکینانو ته خوراک ورکول
[حواله بالا جلد ۵ ص ۳۹۲]

## د نابالغه طلاق

د نابالغه هلک طلاق نه واقع کیږي
[احسن الفتاوی جلد ۵ ص ۱۳۸]

## په زبردستۍ سره طلاق

په زبردستۍ سره طلاق واقع کیږي. که مکره (چې چاپه زبردستۍ شوي وي) درې طلاقه ورکړي وي او نیت یې د رجعي کړې وي بیا هم طلاق مغلظ واقع کیږي. او د داسې زبردستۍ په صورت کې یو طریقه په کار راځي چې طلاق او لیکي په خوله یې او نه وائي د زبردستۍ په حالت کې طلاق لیکلو سره نه واقع کیږي
دویمه طریقه داده چې د لفظ نه روسته سمدستي ان شاء الله او وائي. نو هم طلاق نه واقع کیږي برابره خبره ده چې صرف یې بخپله واوري او د امام کرخي په نزد داهم شرط نه دی
[حواله بالا جلد ۵ ص ۱۲۴]

Scanned with CamScanner

## طلاق لیکلو سره واقع کیږي

د طلاق د واقع کیدلو دپاره د طلاق نامې ښځې ته رسیدل شرط نه دي، صرف په لیکلو سره طلاق واقع کیږي که طلاق رجعي نې لیکلي وي نو طلاق رجعي به واقع شي او کا بائن وي نو بائن به حسابیږي او عدت به د طلاق نامې لیکلو د وخت نه شروع کیږي که څه هم تر اوسه ښځې ته طلاق نامه نه وي رسیدلې

احواله بالا جلد ۵ ص ۱۴۸ |

## بلا اراده لفظ طلاق ویل

که ښځې او خاوند خپلو کې خبرې کولې. چې اچانک د خاوند د خولې نه ووتل تاته دې یو طلاق وي وغیره نو طلاق به واقع شي.

احواله بالا جلد ۵ ص ۱۲۴ |

## په زړه کې د طلاقو خیال راتلل

په زړه کې د طلاق خیال راتللو سره طلاق نه واقع کیږي تر کومه پورې چې په خوله سره تلفظ نه وي شوې. ادارالعلوم دیوبند جلد ۹ ص ۳۴ |

## د رخصتی نه مخکې طلاق ورکول

غیر مدخول بها (چې د چاسره کوروالې نه وي شوې) یعنې د رخصتی نه مخکې یو طلاق صریح ورکولو سره بائنه کیږي د نکاح جدید نه بغیر ورته رجوع صحیح نه ده. احواله بالا جلد ۹ ص ۳۹۰ |

## د طلاق دپاره وکيل جوړول

که چا وويل که ما فلانې کار اوکړو، نو فلانې سړې زما ښځې ته د طلاق ورکولو وکيل دې نو په دې صورت کې هغه وکيل جوړيږي
احواله بالا جلد ۱۰ ص ۱۳۰

## د ګونګي طلاق څنګه واقع کيږي

د ګونګي طلاق په اشارې سره واقع کيږي چې کومه اشاره په جدا والي باندې دلالت کوي او که په ليکلو باندې پوهيګي. نو په ليکلو سره هم طلاق واقع کيږي په دې صورت کې په اشارې سره طلاق نه واقع کيږي كذا في الدرالمختار والشامي او که نه اشاره کولې شي. او نه ليکلې شي. نو بياد طلاقو واقع کيدو څه صورت نشته. او دوهم طلاق ددې ښځې بغير د طلاق نه صحيح نه دې
احواله بالا جلد ۱۰ ص ۱۴۲

## چې کله نامرد سړې ښځې ته طلاق نه ورکوي نو ښځه به څه کوي

که يو سړي سره د يوې ښځې نکاح اوشو او د خلوت (تنهائي) نه روسته معلومه شوه چې دا سړې نامرد دې يعني آله ئي کار نه کوي. او شرعي قاضي هم نه وي لکه نن صبا زمانه کې. نو د طلاق نه علاوه بله طريقه د جداوالي نشته څکه چې طلاق اخيستل يا تفريق کولو دپاره د قاضي شرط ې هغه نشته. اوس د علماؤ په اتفاق سره جماعت المسلمين په ذريعې سره تفريق حاصليدې شي. افتاوی دارالعلوم ديوبند جلد ۱۰ ص ۱۴۲

Scanned with CamScanner

## د خاورو په لوټو غورخولو سره طلاق نه واقع کیږي

که چا خپلې ښځې طرف ته د طلاقو په نیت سره د خاورو دري لوټې او غورځولې او په خوله سره یې د طلاق وغیره لفظ ذکر نه کړو نو طلاق نه واقع کیږي احسن الفتاوی جلد ۵ ص ۱۵۱

## که خوک ښځه د زناپه حالت کې اووینی

که چا خپله ښځه اولیده چې زناکوي نو که خاوند ورسره مینه وي او دایې یقین وي چې دوباره به دا فعل نه کوي نو دیته طلاق ورکول ضروري نه دي که په نکاح کې یې ساتي نو گناه نه ده.

افتاوی رحیمیه جلد ۳ ص ۱۵۰



# د ایلا (قسم خوړلو) بیان

که خاوند قسم اوخوړو چې زه به څلور میاشتې تاته نزدې نه درځم دیته ایلا وایې. نو که خاوند په دې صورت کې څلور میاشتې خپلې ښځې ته نزدې نه شو. نو طلاق بائن به واقع شي

## که چا همیشه دپاره خپلې ښځې ته د نه ورتلو قسم اوخوړو

که چا قسم اوخواړه چې زه به تول عمر خپلې ښځې ته نه نزدې کیږم نو د څلورو میاشتو په تیریدو سره به ښځه بائنه شي. بیا یې د هغې سره نکاح اوکړه او د جماع نه بغیر څلور میاشتې تیرې شوې نو دوهم خل به طلاق واقع شي. اوس که دا ښځه د بل خاوند سره نکاح اوکړي او هغه طلاق ورکړي او بیا د ړومبي خاوند سره نکاح اوکړي نو طلاق به نه واقع کیږي نو ددې ښځې سره په جماع باندې به کفاره لازمیږي څکه چې قسم باقي دې. اقدوري ص ۱۵۱]

## باب الخلع

د خلع مطلب دادې چې لکه څرنګه د ضرورت په وخت کې سړي دپاره طلاق ورکول جائز دي همدغه شان که ښځه د خاوند سره وخت نشي تیرولې. نو هغې ته اجازت شته چې خاوند کوم مهر ورکړی وي هغه واپس کړي او ځان خلاص کړي او که خاوند نه مني نو د عدالت په ذریعې سره خلع اخیستې شي. په عدالت سره د خلع اخیستو صورت دادې چې که عدالت داخبره محسوسه کړي چې د خاوند اوښځې په مینځ کې موافقت نشي کیدلې. نو ښځې ته به اویې چې مهر پریګده. او خاوند ته به اواني چې د مهر پریخودلو

Scanned with CamScanner

په بدله کې طلاق ورکړه. او که خاوند طلاق نه ورکوي نو عدالت د خاوند د مرضۍ نه بغیر د خلع فیصله ښشي کولې په خلع سره یو طلاق بائن واقع کیږي که د ښځې او خاوند په مینځ کې مصالحت اوشي نو دوباره نکاح کولې شي

[آپکے مسائل اور ان کا حل جلد ۵ ص ۳۸۹]

## په طلاق او خلع کې فرق

د خلع مطالبه عموما د ښځې له طرفه کیږي او که د خاوند له طرفه وي نو د ښځې په قبول باندې موقوفه ده. خو طلاق د ښځې په قبلولو موقوف نه وي، دوهم فرق دادی چې په خلع قبلولو سره مهر ساقط کیږي او په طلاق سره نه ساقط کیږي البته که خاوند او وایې چې په دې شرط سره طلاق درکوم چې مهر به پریګدي نو دیته طلاق بالمعاوضه وائي او مهر ساقط کیږي ددې حکم د خلع په شان دی. [حواله بالا جلد ۵ ص ۳۹۰]

## د نابالغ خاوند سره د خلع صورت نشته

د نابالغ خلع او طلاق باطل دي نه طلاق ورکولې شي، او نه دده ولي دده له طرفه طلاق ورکولې شي. نه خلع کولې شي، د بلوغت نه روسته خلع او طلاق ورکولې شي

[دارالعلوم دیوبند جلد ۱۰ ص ۱۸۰]

## خاوند ته د خلع په بدل کې څومره عوض اخیستل جایز دي

په خلع کې قصور او غلطي د خاوند له طرفه وي نو په خلع کې د ښځې نه مال اخیستل حرام دي. او که د ښځې غلطي وي نو مال

اخيستل جايز دي، دوركړي شوي نه زيات اخيستل جائز دي خو خلاف اولى دي [حواله بالا]

# حرمت مصاهرت

## د ښځې سينه په شهوت سره مَس كول

كه چا ديوې ښځې سينه په شهوت سره مَس كړله (لاس يې اولګولو) جماع يې اونكړه نو دې صورت كې ددې ښځې نكاح ددې سړي د خوى سره جائز نه دې

## په شهوت سره خوابښې ښكلول

د خوابښې (د ښځې مور) په شهوت سره مس كولو يا ښكلولو سره ښځه هميشه دپاره حراميږي نو دې صورت كې د ښځې جدا كول ضروري دي او بيا كله هم په نكاح كې نشي راتلې

[حواله بالا جلد ۷ ص ۳۲۷]

## د ښځې خور په شهوت سره مس كول

كه چا د ښځې خور په شهوت سره مس كړه. نو په دې ګهره ښځه نه حراميږي البته دا كار حرام دې [حوالا بالا جلد ۷ ص ۳۲۷]

## د خپلې لور سره زنا كول

كه چا بدبخت دخپلې حقيقي لور سره زنا اوكړه، نو خپله ښځه پرې حراميږي خو كه پلار ددې نه انكار اوكړي او عادل ګواهان د زنا موجود نه وي نو بيا حرمت نه ثابتيږي [حواله بالا جلد ۷ ص ۳۲۷]

## د تره ښځه ښکلول

که چا د خپل تره ښځه په شهوت سره مس کړه، او ښکل یې کړه، نو دا سړی د دي تره د لور سره نکاح نه شي کولې او دا خبره هم څه عذر نه دی چې ماته علم نه ؤ، یا د شهوت غلبه وه.

[حواله بالا جلد ۷ ص ۳۴۱]

## د پلار د ښځې سره زنا کول

که چا د خپلې مور نه علاوه د پلار د بلې ښځې سره زنا اوکړه نو په پلار باندې دا ښځه حرامیږي جدا کول یې لازم دي.

[حواله بالا جلد ۷ ص ۳۴۱]

## که چا په غلطۍ سره خور یا مور ته لاس اولګولو

که چا خپلې مور یا خورته دشپې په غلطۍ سره لاس اولګولو په شهوت سره ؤ یا بغیر د شهوت نه نو په دې سړي خپله ښځه نه حرامیږي.

## د خوی دښځې سره نکاح

د خوی د ښځې سره نکاح قطعا حرامه ده، همدغه شان د خپلې ښځې د مور سره نکاح همیشه دپاره حرام ده، برابره خبره ده چې ښځې سره یې جماع کړې وي یا نه. [حواله بالا جلد ۷ ص ۳۴۷]

چې د کومې ښځې سره د چا خوی زنا کړې وي هغه د پلار دپاره حرامه ده. [حوالا بالا جلد ۷ ص ۳۴۷]

## د نابالغه سره زنا کول

که بالغې ښځې د نابالغه هلک سره زنا اوکړه اوس که دا هلک مراهق (بلوغت ته نزدی وي) نو حرمت ثابتیږي ددغې ښځې د لور

سره دغه هلک نکاح نشي کولې او که مراهق نه ؤ نو بيايې نکاح جائز ده حواله بالا جلد ۷ص ۳۵۲]

## د ماما ښخه ښکلول

که چا د خپل ماما ښخه ښکول کړه په شهوت سره نو ددې د لور سره يې نکاح صحيح نه ده احوالا بالا جلد ۷ص ۳۵۴]

## حرمت مصاهرت په کوم اندام ليدلو سره ثابتيږي

صرف فرج داخل ته په شهوت سره نظرکولو باندې حرمت مصاهرت ثابتيږي. نورواندامونو ته په شهوت سره نظر کولوباندې نه ثابتيږي احواله بالا جلد ۷ص ۳۵۲]

## که دچا خپلې لور ته نيت خراب شو

که چا د خپلې لور سره د زنا اراده اوکړه. خو زنا يې اونکړه نو صرف په اراده کولو سره پرې ښخه نه حراميږي البته که خپلې لورته يې په بربنده باندې په شهوت لاس اولګولو نو ښځهٔ پرې حراميږي اوس يې جداکول لازمي دي احواله بالا جلد ۷ص ۳۶۱]

## د ښځې د مرګ نه روسته د هغې د خور ترور وغيره سره نکاح کول

که د چاښځه مړه شي، نو د مرګ نه روسته د هغې د خور خالې اوترور سره نکاح کولې شي احواله بالا جلد ۷ص ۳۶۴]

## د ښځې سره د خاوند د نيکه زنا کول

که د چا د ښځې سره د هغه نيکه زنا اوکړه، نو دا ښځه په دې خاوند حراميږي

العبد الضعيف محمد ولي "سعيد"
عفي الله عنه

Scanned with CamScanner

## دخواښې سينو ته لاس اچول

که چا په تياره کې د خپلې ښځې د مور سينو ته لاس واچولو په شهوت سره خيال يې دا ؤ چې زما ښځه ده خوچې روسته معلومه شوه نو ډير شرمنده شو. نو اوس که په سينو باندې کپړه نه وه يا وه خو ډيره نرۍ وه نو حرمت به ثابت شي. او په دې سرې به خپله ښځه حرامه شي. [حواله بالا جلد ۷ص ۳۸۲]

## د خپل خوم ښکلول

که ښواخې خپل خوم ښکول کړو او غاړه يې ترې واخيسته او دته انزال اوشو او خوم وايې چې زما شهواني خيال نه ؤ بې اختياره انزال اوشو نو په دې صورت کې په د باندې ښځه نه حراميږي.
[حواله بالا جلد ۷ص ۳۸۹]

## کتاب العدت

د عدت په لحاظ سره د مطلقه ښځو درې قسمونه دي:
حامله: ددې عدت د بچي پيدا کيدو سره ختميږي.
هغه ښځه چې حيض ورته راځي ددې عدت درې حيضه دي، چې کله د طلاق نه روسته دريم حيض نه پاکه شي نو عدت به يې ختم شي.
دريم قسم هغه ښځې دي چې نه حامله وي او نه ئې حيض راځي د بوډاوالي يا د ډير وړکوالي د وجي نه د دوی عدت درې مياشتي دي. که د چا خاوند مړشي. نوعدت ئې څلور مياشتی او لس ورځې دی

## د رخصتی نه مخکې د کونډې عدت

که د رخصت کيدو نه مخکې دچاخاوند مړشی، نو عدت به ئې څلور

مياشتې او لس ورځې وي، او د پوره مهر مستحقه به وي دا به د
مرحوم د ترکې نه به اداکولې شي. [حواله بالا جلد ۵ ص۴۱۱]

## د رخصتۍ نه مخکې د طلاقو عدت

د رخصتۍ نه مخکې طلاق طلاق بائن دي او په ښځه عدت نشته
لهذا د طلاق واقع کيدو نه سمدستي روسته داجينۍ د بل چا سره
نکاح کولې شي. [حواله بالا جلد ۵ص۴۱۲]

## د نابالغه جينۍ عدت

که د نابالغه جينۍ او هلک نکاح اوشي او د رخصتۍ نه مخکې د
نابالغه هلک انتقال اوشي، نو په دې نابالغه جينۍ باندې د وفات
عدت لازم دي. [حواله بالا جلد ۵ ص ۱۱۴]

## د مطلقه مغلظه سره صحبت باندې استيناف د عدت نشته

که يو سړي خپلې ښځې ته طلاق مغلظ ورکړل او بيا ورسره جماع
وکړه، نو د طلاق د وخت نه به عدت شمارل کيږي دوهم عدت نه
واجبيږي. [احسن الفتاوٰی جلد ۵ ص ۴۲۸]

## بچې په خيټه کې مړ شو نو د عدت حکم

هغه ښځه چې طلاق ورکړل شوې وي يا ئې خاوند وفات وي او په
خيټه کې ئې بچې وچ شوې وي بچې راوځي نه نو په دوائي يا په
اپريشن سره به د رحم صفائي اوکړې شي که حمل د څلور
مياشتونه د زيات وخت وي نو په مذکوره طريقې چې کله بچې

ساقط شي، نو عدت به ختم شي. او که د څلورو نه کم وي نو بيا به نې عدت درې حيضه وي او که د رحم صفائي بالکل ممکنه نه وي نو د تکليف لرې کولو دپاره په دې قول باندې عمل کولو ګنجائش او جواز شته ، چې د حمل اکثره موده دوه کالو نه روسته د درې مياشتو عدت تير کړي. [حواله بالا جلد ۵ ص۱۴۲۹]



## د ممتده الطهر عدت

چې د کومې ښځې د شروع نه حيض نه راځي او عمر ئې ديرش کاله شي، بيا به هغه آييسه (نااميده) شمار کيږي او که د حيض راتلو نه روسته بالکل بند شو. ياد ډيرې مودې نه پس راځي، نو دا ښځه به د پينځه پنځوس کالو په عمر کې آيسه (نااميده) شمار کيږي ددې دواړو ښځو عدت درې مياشې دی خو په دوهم صورت کې شرط دادی چې کم نه کم شپږ مياشې حيض بند وي دا د شپږو مياشتو موده ، د ۵۵ کالو نه مخکې تيره شوې وي دې دواړو قسمونه کې که د عدت درې مياشتې پوره کولو نه مخکې حيض شروع شي، نو عدت به دوباره په حيض سره پوره کوي او که نااميدې د وخت نه مخکې د عدت ضرورت راشي نو د علاج په ذريعې سره دې حيض جاري کړې شي او درې حيضه دې پوره کړې شي

او که په هيڅ يو علاج سره حيض نه جاري کيږي نو د ضرورت په وخت کې دې د امام مالک صيب د مذهب په قاضي باندې د يو کال عدت تيرولو فيصله اوکړي او که څوک مالکي قاضي نه وي نو د ضرورت په وخت کې بغير د قاضي نه هم ديو کال د عدت تيرولو فتوی ورکولې شي. [حواله بالا جلد ۵ ص ۱۴۳۵]

## نامرد سره خلوت صحیحه کولو نه روسته عدت او مهر کامل واجبیږي

که چا د ښځې سره نکاح اوکړه، او په تنهائي کې یوځاې شول خو دخاوند نامرد ؤ ځکه جماع اونشوه اوس خاوند طلاق ورکړلو، نو مهر کامل او عدت به واجب وي احواله بالا جلد ۵ ص ۱۴۳۸

## که معتدې ته سخته یره وي نو مکان بدلولې شي

که د چا خاوند مړشو، نو دې ښځه به په همدغه کورکې عدت تیرول پکار دي، خو که دلته د عدت د وجې نه ورته د ځان عزت یا د مال خطره وي یا د یواځې اوسیدو د وجې نه یریږي نو په بل نزدې کورکې عدت تیرولې شي. احواله بالا جلد ۵ص ۱۴۴۱

## د حاملې په دوائي سره حمل پریوتل

که مطلقې حاملې خپل حمل په څه حیله سره ساقط کړو، نو که ددې حمل بعض اندامونه ظاهر شوي وي مثلا لاس، ښپې وغیره نو عدت به ئې پوره شي.

## د طلاق ثلاثه نه روسته د خاوند زنا کول

که یوسړي ښځې ته درې طلاقه ورکړل او څلور پنځه میاشتې تیرې شي خو خاوند او ښځه هم هغه شان جماع کوله نو په دې صورت کې په ښځه درې طلاقه واقع شول او د خپل خاوند سره بغیر د حلالې نه نکاح نشې کولې او د خاوند صحبت کول حرام دي.

## کتاب الحضر والاباحت جائز او ناجایز څیزونه

د حلال ځناور اوه۷ څیزونه مکروه تحریمي دي: بهیدونکې وینه، غدود، مثانه، تریخې، د نر د بولو ځاې، اود مادې دبولو ځاې.

خوټې [آپکے مسائل اور انکا حل جلد ۴ ص ۲۵۵]

## د ښځې د لاس خیټې او سینې په ذریعه سره منې خارجول

د ښځې په لاس او خیټې وغیره سره منې خارجول جایز دي د تسکین د ضرورت دپاره بلا کراهت جائز دي. او بلا ضرورت مکروه تنزیهي دي. [احسن الفتاویٰ جلد ۸ ص ۲۴۴]

## د علاج دپاره په لاس سره منې خارجول

که د چا اولاد نه کیږي بیا د علاج دپاره د منې ټیسټ کیږي او منې خارجول بغیر د لاس نه څه صورت نشته. نو دې صورت کې لاس سره منې خارجولو ګنجائش شته. خو چې کله د علاج بله طریقه نه وي [فتاویٰ محمودیه جلد ۱۵ ص ۳۹۴]

## د چرګو غول او د غواه میښو غوشیان خرڅول

د چرګو غول او د غوا میښې وغیره غوشیان خرڅول جایز دي.
[فتاویٰ رحمیه جلد ۱۰ ص ۳۲۰]

## د ماشوم په غوږ کې د ښځې اذان

چې کله ماشوم پیدا شي نو هغه ته به په غوږ کې یو صالح متقي سړی اذان وکړي دا خبره بهتره ده. خو که ښځې ورته په غوږ کې اذان او اقامت اویلو نو کافي ده. دوهم خل د کولو ضرورت یې نشته [حواله بالا جلد ۱۰ ص ۴۸۲]

Scanned with CamScanner

## د ښځې که کېره او بریتونه راوخي

که د ښځې ګیره او بریتونه راوخي نو خریلې شي. بلکې د ښځې د ګیرې ویښتان صاف کول مستحب دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۲۴۷]

## که د حاملې په خيټه کې بچې مړشي

که د حاملې ښځې په رحم کې بچې مړ شي او د مړ کیدو پوره یقین وي او د ښځې د انتقال خطره وي نو د ښځې د ځان بچ کولو دپاره ماشوم غوځول او رایستل جایز دي. البته که ماشوم ژوندې وي بیا جایز نه دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۳۸۲]

## ښځه او خاوند یو بل ته په خپل نوم سره رابللې شي

خاوند ښځې ته په نوم سره اواز کولې شي. خو ښځه خپل خاوند ته نوم سره اواز نشي کولې داد بې ادبۍ او ګستاخۍ د وجې نه مکروه ده. [حواله بالا جلد ۲ ص ۴۱۳]

## د یوې ښځې سره د بلې په مخامخ جماع کول

که د چا دوه ښځې وي نو د یوې سره د بلې مخامخ جماع کول بې حیاني ده . او د بلې ښځې زړه ته تکلیف رسول دي یوې ښځې ته د بلې ستر ښودل هم ګناه ده لهذا د داسې طریقې نه ځان ساتل واجب دي [حواله بالا جلد ۲ ص ۲۵۴]

## چې د کوم ځناور سره بدفعلي شوي وي د هغې قرباني

که چا د ځناور سره غلط کار اوکړو او چا اولیدو نو دداسې ځناور غوښه خوړل مکروه دي لهذا ددې قرباني به هم مکروه وي بهتره

خبره داده چې داسې څناور مالک ذبح کړي او ونې سوزوي دې
دپاره چې داقصه ختمه شي وګرنه چې کله ئې خلقويني نو خبره به
ورته راياديږي احواله بالا جلد ۳ ص ۱۸۷]

## د ښځې سينه بند استعمالول

ښځې دپاره سينه بند استعمالول جايز دي

[فتاوى محموديه جلد ۵ ص ۳۵۲]

## په دبر کې صحبت کول

د ښځې سره په دبر کې جماع کول بالاتفاق حرام دي او ګناه کبيره ده
که چا کړي وي نو په رښتيني زړه سره دې توبه اوباسي البته په
داسې کار سره ښځه د نکاح نه نه اوځي

[فتاوى رحيميه جلد ۲ ص ۱۴۲]

## د نامه نه لاندې ويښتانو صاف کول دپاره د پوډرو استعمال

دنامه نه لاندې ويښتان د سرې دپاره په ستره يا بليډ سره صاف کول
او د ښځو دپاره اباستل مستحب دي دپوډرو او کريمو استعمال هم
جايز دى [احسن الفتاوى جلد ۸ ص۷۸ ]

## د نامه نه لاندې ويښتانو ته کومه پورې خريل پکار دي

د نامه نه لاندې ويښتانو حد دنامه نه واخله د ورانه تر ويښونو
پورې او د دبر نه اخوا ديخوا يعني ګيرچاپيره چې ترکومه پورې
ممکن وي [اپکے مسائل اور ان کا حل جلد ۲ ص ۵۷]

## ښځه مړه شي او په خېټه کې ئې ژوندې بچې وي

ښځه چې کله مړه شي، او په خېټه کې ئې ژوندې بچې وي نو د اپریشن په ذریعه سره ئې را ویستل جایز دي.
[فتاوي محمودیه جلد ۱۵ ص۲۸۸]

## د خرې پېې د علاج دپاره څکل

که دیندار او تجربه کار ډاکتر درته اویل چې ستا علاج د خرې په پیوکې دی دینه علاوه بل علاج نشته نو د خرې پېې څکل جایز دي
[حواله بالا جلد ۱۳ ص۴۴۰]

## د خاوند خاص اندام په لاس کې نیول

که ښځې د خاوند خاص اندام په لاس کې اونیونو څه ګناه نه ده البته څه ښه خبره هم نه ده. [حواله بالا جلد ۱۲ ص۳۱۱]

## د مړې ښځې مخ ته کتل

ښځه چې کله مړه شي نو خاوند ئې مخ ته کتې شي. البته بدن ته دې لاس نه لګوي. [حواله بالا جلد ۱۲ ص ۳۲۰]

## په بربنډه دعا او درود ویل

په بربنډه درود شریف یا هغه دعا چې متقوله وي ویل خلاف ادب او مکروه دي. [حواله بالا جلد ۱۲ ص ۴۱۵]

## د ولادت په وخت کې د ښځې مددکول

د حاملې ښځې مدد کول جائز دي چې کله څوک ماهره ښځه نه وي یا

بالکل ښځه نه وي د مجبوري د وجې نه ئې خاوند کولې شي
احواله بالا جلد ۸ ص ۲۷۰]

## د نامه نه لاندې وېښتان په بل چا صفا کول

د نامه نه لاندې وېښتان په بل چا صاف کول هلته جائز دي چې کله ډېره مجبوري وي سړی ډېر کمزورې وي چې څوک ئې ورله صاف کوي هغه به حتی الوسع د لاس لګولو او کتلو نه احتیاط کوي
احواله بالا جلد۸ص ۲۹۱]

## دجنابت په حالت کې حلاله کول

د جنابت په حالت کې ځناور ذبح کول جایز دي همدغه شان د ښځې ذبیحه هم حلاله ده. ]احسن الفتاویٰ جلد ۷ ص ۴۰۸،۳۸۳]

## د زنا د ثابتولو دپاره ډاکټري معائنه

چې کله په ښځه او سړي باندې د زنا تهمت اولګي. نو عدالت ئې د معائنې دپاره ډاکټرته لیګي. اوډاکټرد سړي اوښځې یو بل ټیز خصوصا شرمګاه ښه په غور سره ګوري نو د زنا ثابتولو دپاره شرعا دغه طریقه معتبره نه ده. لهذا دغه شان د شرمګاه معائنه کول حرام دي ډاکټر دپاره د شرمګاه کتل صرف هغه وخت جائز دي چې کله د مرګ خطره وي یا ډېرزیات تکلیف او بیمارۍ کې د مبتلا کېدو سخته خطره وي ]احواله بالا جلد ۸ ص ۲۵۵]

## د نابالغه سترکتل

د ډېر ورکوټي ماشوم عورت غلیظه او خفیفه دواړه کتل جائز دي تر اوو۷ کالو پورې صرف عورت خفیفه کتل جائز دي او د اوو ۷

Scanned with CamScanner

کالو نه د زیات عمر والا ماشوم په دې حکم کې د بالغ په حکم کې
دې لهذا ددې عمرنه روسته غلیظه او خفیفه دواړه کتل ناجایز دي
د عورت غلیظه نه مراد د غټو او وړو بولو ځای دې او د خفیفه نه
مراد دې نه علاوه نور بدن دي. احوالا بالا جلد ۸ ص ۲۲۲

## د ښځې وریزې جوړول شرعا څنګه دي

د ښځې وریزې او باڼه جوړول جائز نه دي په حدیث کې په داسې
ښځو باندې لعنت راغلې دې
آپکے مسائل اور انکا حل جلد ۷ ص ۱۲۷

## فرج کې د شاله طرفه صحبت کول

که یو سړی د شاله طرفه د خپلې ښځې په مخکې شرمګاه کې جماع
اوکړي، نو جائز ده. فتاوی محمودیه جلد ۱۲ ص ۳۱۲

## چې کومه کوټه کې قران وي په هغه کې جماع کول

که قرآن کریم په الماري یا کړکۍ کې په اوچت ځای باندې پروت
وي نو بیا په دې کوټې کې جماع کول څه ګناه نه لري
احواله بالا جلد ۱ ص ۱۱۵

## په جومات کې هواخارجول

په جومات کې هوا خارجول منع دي که چاته بیا بیا د هوا خارجولو
ضرورت راځي نو د جومات نه دې بهر اوځي . که نه وځي نو د
کراهت کارکوي. احواله بالا جلد ۱ ص ۴۷۹

Scanned with CamScanner

## د حمل په حالت کې ښځې سره جماع کول

د حاملې ښځي سره کوروالې کول جائز دي. ترکومه پورې چې د کوروالې د وجې نه نقصان نه کیږي که نقصان کیږي نو بیا کوروالې کول نه دي پکار. [حواله بالا جلد۸ ص ۱۹۷]

## د تفخیذ او تبطین حکم

که چا خپله شرمګاه د ښځې خیټې یا بلې څه حصې سره اومږلو او انزال ئې اوشو نو ګناه نشته [حواله بالا جلد ۱۲ ص ۳۱۲]

## د بوډۍ ښځې سره جماع کول

د بوډۍ ښځې سره جماع کول صحیح دي. چې ترکومه جماع برداشت کولې شي. که جماع نشي برداشت کولې او نقصان یې کیږي نو بیا جماع صحیح نه ده. [حواله بالا جلد ۱۲ ص ۳۱۸]

## د نابلغې ښځې سره جماع کول

د خپلې نابالغه ښځې سره جماع کول صحیح دي. چې جماع برداشت کولې شي . او که نشي برداشت کولې نو صحیح نه ده
[حواله بالا جلد ۱۲ ص ۳۱۸]

## د خاوند او ښځې د یو بل شرمګاه کتل

خاونداو ښځه د تنهائي په حالت کې د یو بل شرمګاه کتلې شي. خو نه کتل ئې بهتر دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۳۴۵]

Scanned with CamScanner

## د انجشکن په ذریعه سره اولاد حاصلول

که د چا په مني کې جراثیم مړه شوي دي او بچیان نې نه کیږي نو لکه څرنګه چې خاوورته په ټیوب (نلکی) حمل کولې شي. دغه شان ښځې ته حمل کول قطعا جائز نه دي احواله بالا جلد ۱۲ص ۳۴۵]

## د حضور صلی الله علیه وسلم فضلات پاک دي

د نبي علیه السلام فضلات پاک دي د جمهورو علماؤ دا قول دي

[امداد الفتاوی جلد ۱ ص ۳۵۰]

## په زنا سره د حاملې ښځې سره جماع کول

که یوه ښځه د زنا د وجې نه حامله شوي وي نو د حمل په حالت کې خاوند ورسره جماع کولې شي. او دا ماشوم به همدې خاوند ته منسوب کیږي. حرامي ویل ورته جائز نه دي

[احسن الفتاوی جلد ۸ ص۳۲]

## د علاج دپاره د ښځې شرمګاه کتل

د سخت ضرورت په وکت کې چې کله ښځه ډاکټر نه میلاویګي نو نر ډاکټر د ښځې شرمګاه د علاج دپاره کتلې شي. او لاس هم لګولې شي احواله بالا جلد ۸ص ۳۲]

## د ښځې شرمګاه ښکلول

د ښځې شرمګاه ښکلول یا څټل جائز نه دي لاس لګول ورته جائز دي احواله بالا جلد ۸ ص ۴۵]

Scanned with CamScanner

## د خاوند نه علاوه د بل چا مني په رحم کې اچول

ټن صبا داسې آله ایجاد شوې ده چې په هغې سره د ښځې په رحم کې د خاوند نه علاوه د بل چا مني اچولې شي. چې ددې نه عموما ښځه حامله کیږي او ماشوم پیدا کیږي دا کار حرام دی خو زنا نه ده او د ماشوم نسبت د هغه چانه ثابتیږي چې د چا ښځه ده.
[احسن الفتاوی جلد ۸ ص ۲۱۴]

## د شرمګاه څټل

د ښځې د شرمګاه ظاهري حصه پاکه ده. خو د ښځې شرمګاه ښکلول یا څټل جائز نه دي سخت مکروه او ګناه ده. دا دسپو چیلو وغیره څناورو سره مشابهت دې. البته که ښځه باندې شهوت غالب وي او خاوند ته د جماع وینا کولو کې شرم کوي نود خاوند مخصوص اندام خله کې واخلي نو دا معذوره ده. خو دا عادت جوړول مکروه دي. په دې خبره غور اوکړئ چې په کومه خوله څوک کلمه وائي د قران تلاوت کوي داخوله به په داسې ګنده کار کې استعمال څنګه زړه غواړي. [فتاوی رحیمه جلد ۲ ص ۲۷۰]

## د انجکشن په ذریعه سره رحم ته مني رسول

که څوک د مني ټیسټ کول غواړي نو په لاس سره مني خارجول نه دي پکار. بلکې د جماع کولو په وخت کې دې عزل اوکړي او مني دې محفوظه کړي [حواله بالا جلد ۲ ص ۲۸۰]
دعزل مطلب دادی چې خاوند د خپلې ښځې سره جماع شروع کړي او چې کله ئې انزال کیږي نو خپله شرمګاه بهر کړي او مني بهر خارج کړي

Scanned with CamScanner

## عزل جائز دی که ناجائز

عزل کول د ښځې د اجازت نه بغیر ناجائز دی او د ښځې په اجازت سره مکروه دی حضرت عمر رض فرمائي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د عزل نه منع کړیده. ا درسي تفسیر پاره عمه ص ۱۸۴

## داسې طریقه اختیارول چې حمل قرار اونه نیسي

داسې صورت اختیارول چې حمل اونشي لکه چې نن صبا په دنیاکې د ضبط تولد په نوم سره ددې ډیر صورتونه رائج دي دیته هم نبي علیه السلام واد خفي ( په خفیه طریقې سره ژوندي ښخول) ویلي دي. ا حوالا بالاص ۸۴رواه مسلم ا

په بعض نورو روایاتو کې د نبي علیه السلام چې د عزل متعلق کوم سکوت یا عدم ممانعت منقول دې هغه د ضرورت په وخت کې دې او هغه هم دغه شان چې همیشه دپاره د نسل د ختمولو صورت جوړ نشي. احواله بالا ص ۸۴ا

## په څناور د جفتې کولو اجرت اخیستل

نر څناور په ماده (ښځه) باندې د خیجولو اجرت اخیستل حرام دي د حامله کولو اجرت ورکول او اخیستل جائز نه دي، که مجبورا ئې څوک ورکړي نو ورکونکي ته ګناه نشته.

[فتاوی رحیمیه جلد ۱۰ ص۲۲۸ ]

## د حمل اسقاط جائز دی که نه

تر دوګ ،درې چې په بچې کې روح او ساه نه وي راغلې. نو داسې حمل ساقط کول په قتل ؟ ې نه راځي، خو بغیر د ضرورت نه دا کار

Scanned with CamScanner

مکروه دی، او عذر د وجې نه جائز دې او د روح راتلو نه روسته حمل ساقط کول حرام او لويه ګناه ده، او نفس قتلول دي
[امداد الفتاوی جلد ۴ ص ۲۰۳]

## که ډاکټر ناجائز حمل ضايع کړو

که د يوې ښځې ناجايز حمل ؤ. او ډاکټر دې دپاره دوائي ورکړه چې حمل ئې ساقط او ضايع شي که په دی وخت کې په حمل کې روح نه وي نو ګنجائش شته. البته که په حمل کې روح وي نو ګناه کبيره ده، په ديکې کفاره نشته ځکه چې کفاره په قتل خطا کې وي او دا عمدا قتل دی او په قتل عمد کې قصاص وي خو دلته قصاص هم نشته. ځکه چې قصاص د ولي حق وي او دلته ولي پخپله د قتل مطالبه کوي ځکه قصاص نشته خو دا ولد الزنا دی او د زنا ولد الزنا نسبت د مور نه ثابتيږي او د زاني نه نه ثابتيږي او نه زاني د قصاص دعوی کولې شي، ځکه چې زاني ولي نه دی او والده که څه هم ولي ده، خو هغه په قتل کې پخپله شريکه ده لهذا په دې صورت کې په ډاکټر باندې توبه او استغفار لازم دی او آينده دپاره د داسې عمل نه پرهيز کول پکار دي.

## د څلورو مياشتو نه روسته حمل ساقط کول

بچيان ژوندي دفن کول يا قتل کول لويه ګناه اولوی ظلم دی، او دڅلورو مياشتو نه روسته حمل ساقط کول په دې حکم کې داخل دي ځکه چې په څلورمه مياشت کې به حمل کې روح راځي او هغه د ژوندي انسان په حکم کې وي. [درسي تفسير پاره عم ص ۱۸۴]

## د ضبط تولید او اسقاط (منصوبه بندي) مسئلې

د ضبط تولید او اسقاط حمل په مجموعي توګه سره څلور صورتونه
جوړیږي قطع نسل یعني داسې صورت اختیارول چې همیشه دپاره
د بچو پیدا کیدو قوت ختم شي
ددې حکم دادې چې دا طریقه بالاتفاق حرامه ده . برابره خبره ده.
چې په دې کې څومره هم فائدې په نظر راځي او برابره ده چې ددې
دواي څومره هم قوي وي
منع حمل یعني داسې صورت اختیارول چې قوت تولید باقي وي
خو حمل قرار نه نیسي
نو په دې صورت کې لږ تفصیل شته چې بغیر د ضرورت نه دا
صورت اختیارول مکروه تنزیهي دي او د لاندینو عذرونو د وجې نه
جایز دي
ښځه دومره کمزورې وي چې د حمل برداشت نه شي کولې.
ښځه د خپل وطن نه لرې په داسې ځای کې وي چې هلته ئې د
مستقل قیام اراده نه وي او سفر په څه داسې ذریعه سره وي چې
میاشې پکې لګي
د ښځې او خاوند خپلو کې تعلقات ښه نه وي او د جدائي اراده ئې
وي
د مخکې نه د موجود بچي د صحت خرابیدو یره وي
داخطره وي چې د وخت د فسادونو د وجې نه به ماشوم بداخلاقه او
د مور او پلار د شرمندګی سبب جوړ شي. که د داسې مقصد دپاره
ئې حمل بند کړو چې د اسلامي اصولو خلاف دي نو دا عمل بالکل
ناجائز دي مثلا د کثرت اولاد د وجې نه که رزق د تنګی خیال وي یا
دا خیال وي که جینۍ پیدا شوه، نو شرم دې د حمل قرار نیولو نه د

خلورو میاشتو تر پوره کیدو مخکې په څه ذریعه سره حمل ساقط کول. ددی حکم دادی چې بلا عذره نا جائز او حرام دي البته د بعض عذرونو د وجې ددی ګنجائش شته مثلا د حمل د وجې نه د ښځې پی اوچیګي او په نورو ذریعو سره د رومني بچي د پالنې انتظام ناممکن یا مشکل وي یا دیندار ښځه ډاکټره ددې ښځې معاینه اوکړي او دا اوائي چې که حمل باقي پاتې شو. نو د ښځې د ځان یا د بل څه اندام د ضایع کیدو سخته خطره ده

د خلورو میاشتو نه روسته حمل ساقط کول مطلقا حرام دي د هیڅ یو عذر د وجې نه ددي ګنجائش نشته.

[احسن الفتاوی جلد ۸ ص ۳۴۷]



# يو پيغام په نوم داهل اسلام

نن صبا دورکې کفار د مسلمانانو د ډيريدونکې ابادۍ نه خائف دي، نو دوی د مسلمانانو د ختمولو دپاره د ډير سوچ او فکر نه روسته يو طريقه ايجاد کړه، چې ديته خانداني منصوبه بندي ويل شي، او بعض نام نهاد مسلمانان هم په ديکې شامل دي، او دوی داخبره کوي چې که بچي ډيرشي، نورزق به له کومې خواه پيدا کيږي، زه وايم چې د رزق ذمه داري الله تعالی اخيستي ده الله تعالی ځناورو ته رزق ورکوي په ځناورو کې خانداني منصوبه بندي نشته او نه ئې څه تجارت او دکان شته بچي يې پيدا کيږي الله رزق ورکوي نوانسان چې اشرف المخلوقات دې او د رزق کټلو ئې مختلفې ذريعې دي . الله تعالی به هغه ته رزق ولې نه ورکوي بهر حال نن صبا زمانه کې رايجه منصوبه بندي د کفارو يو شازش دې د کافرانوپه ملکونو کې خصوصا په امريکه کې داسې ډيرې کارخانې موجودې دي چې هغه داسې دوايانې تياروي چې هغې سره حمل قرار نه نيسي مخکې به خلق يريدل که زنا مواوکړه نو چاته به پته اولګي خو نن صبا د مذکوره خانداني منصوبه بندي او دوايانو د وجې په يوه ورخ کې په زرګونو زنا ګانې کيږي او دوايانې استعماليږي د دې ذمه دار به څوک وي ،؟ درزق د وجې نه منصوبه بندي شرعا قطعا حرام دې او دا خلق بيا يوه ناره لګاوي چې (چهوټا خاندان زندګي اسان، زه وايم چې چهوټا خاندان زندګي ويران.

کله کله داسې اوشي چې يو سړې منصوبه بندي اوکړي دوه بچي ئې وي خو بيا هغه مړه شي نو زندګي ئې ويرانه پاتې شي اوخوله ئې وازه نيولې وي بيا نه بل واده کولې شي او نه ئې بچي پيدا کيږي

بهر حال دا یوه لویه موضوع ده په دې باندې دا ډیر څه لیکو لو
دپاره کافي اوراق درکاردي صرف په اخرکې خپلو مسلمانانو رونړو
ته داوایم چې داد کفارو یو سازش دی ددې نه ځان بچ کړئ او نور
مسلمانان هم ترې بچ کړئ او د خپلو علمائ کرامو نه په هر کار کې
راهنمائي حاصله کړئ چې په ورځ د قیامت بیا د شرمندګۍ سره مخ
نه شئ. [ازمترجم]

## کفریه کلمات او د هغې احکامات

د قران پاک توهین کول کفر دے، که چا د قران پاک توهین اوکړو
نو مرتد کیږي، او نکاح ئې باطله کیږي، او د مرتد جنازه کول جایز
نه دي او نه ورسره تعلقات ساتل جایز دي
[اپکے مسائل اور انکا حل ج ۱ ص ۴۸]

## په دین پورې توقې کول

د دین اسلام د څه خبرې نه توقې جوړول کفر دې او دې سره ایمان
ساقط کیږي داسې سړي ته د خپلو کفریه کلماتو نه توبه ویستل
پکار دي او خپل ایمان تجدید کول پکار دي نکاح به هم دوباره
کوي که بغیر د توبې او نکاح بنځې ته نزدې شو نو دا به زنا او
بدکاري حسابیږي. [حواله بالا]

## په سنتو پورې توقې کول کفر دی

د حضور صلی الله علیه وسلم به څه څیز پورې توقې کول ښکاره کفر
دې که مخکې مسلمانان ؤ نو د توقو نه روسته مرتد اوګرځیدو.
[حواله بالا ج ۱ ۵۰]

Scanned with CamScanner

## د فاندې دپاره خان ته غیر مسلم ویل

که چا د خپلې فائدې دپاره دا اویل چې زه مسلمان نه یم نو داسې سړی د ایمان نه خارجیږي نکاح دې دوهم ځل اوکړي
[حواله بالا جلد ۱ ص ۵۱]

## د حضور صلی الله علیه وسلم لږه غوندې ګستاخي هم کفر دې

د حضور صلی الله علیه وسلم د ویښتانو مبارکو توهین کول هم کفر دی د فقهې په کتابونو کې دا مسئله ذکر ده. چې که چا د حضور صلی الله علیه وسلم د ویښتانو مبارکو دپاره د تصغیر صیغه استعمال کړه نو کافر به شي. [حواله بالا جلد ج۱ ص۵۲]

## د غصې په حالت کې د کفر کلمه ویل

د غصې په حالت کې د کفر کلمه ویل هم کفر دی توبه کول پکار دي د ایمان او نکاح تجدید د اوکړي. [حواله بالا جلد ۱۲ص ۳۴۳]

## په خلفای راشدینو او حضرت عائشه رضي الله عنها باندې تهمت لګول

خلفائ راشدینو ته کنځل کولو والا ته ډیرو علماؤ او فقهاؤ کافر ویلي دي او خصوصا په حضرت عائشه رضي الله عنها باندې تهمت لګولو والا بالاتفاق کافر دې ځکه چې په دې کې د قران کریم د ایاتونو نه انکار دی. [حواله بالا جلد ۱۲ص ۳۷۳]

## دا ویل چې مونږ کافران یو څه حکم لري؟

که یو مونځ ګزاره بل چاته اویل چې مونځ اوکه هغه اویل چې مونږ خو کافران یو نو په دې کلمه ویلو سره دا کافر شو توبه او استغفار

دې کوي اود ایمان او نکاح تجدید دې اوکړي
[حواله بالا جلد ۱۲ ص ۳۷۴]

## په جومات کې به متیازې کوم کلمه کفر ده

که چا د جومات متعلق اویل چې متیازې به پکې اوکړم یا خنزیر به پکې ذبح کړم نو دا کفریه کلمات دي توبه کول او د نکاح او ایمان تجدید کول پکار دي. [حواله بالا جلد ۱۲ص ۳۸۲]

## زه اسلام نه منم

که یو سړي بل ته نصیحت کولو او هغه بل ورته اویل چې زه اسلام نه منم نو دا کفر دی. [حواله بالا جلد ۲ ص ۳۸۲]

## زما حشر دې د هندوانو سره وشي

که چا اویل چې زما حشر دے دهندوانو سره اوشي نودا د کفر کلمات دي. [حواله بالا جلد ۱۲ص ۴۳۴]

## د الله او رسول نه د بیزارۍ اظهار کفر دی

که دوه نفره په جګړه ؤ. او بل چا ورته د قران ایت اویلو چې جګړه مه کوئ په دې کې یو اویل چې مونږ ته ستا ایاتونه الله او رسول نه دي پکار نودا د کفر کلمات دي. [حواله بالا جلد ۱۲ ص ۴۴۷ ]

نوټ: چې کله سړې کافر یا مرتد شي نو دوباره به کلمه وائي او خپلې ښځې سره به نکاح هم دوباره کوي.

# متفرقې مسئلې

## د مستحاضې حکم

استحاضه هغه وينه ده، چې په حيض کې د درې ورځو نه کمه يا دلسو نه زياته راځي، او په نفاس کې د څلوېښتو ورځو نه زياته وي نو ديته استحاضه وائي، ددې حکم دادی چې په مستحاضه ښځه باندې لازم دي چې د حيض او نفاس موده پوره کولو نه روسته غسل اوکړي او بيا به دهر مونځ په وخت کې نوې اودس کوي او مونځ تلاوت وغيره به کوي [فتاوی حقانيه جلد ۲ ص ۵۲۷]

## د حيض په ايامو کې استعمال شوې کپړې

بعض ښځې د حيض په ايامو کې استعمال شوې کپړې بهر په لارو کوڅو کې غورځوي د غيرت تقاضه داده چې که داسې کپړې د دوباره استعمال قابلې نه وي نو په اور دې اوسوزولې شي بهر غورځول ئې مناسب نه دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۵۲۷]

## د جنابت حالت کې په کمپيوټر سره قران ليکل

په شريعت مقدسه کې د قران کريم احترام اصلا مقصود دې چې کله د جنابت په حالت کې د قران تلاوت صحيح نه دې نو همدغه شان فقاؤ د قران کريم ليکل هم منع کړي دي نو د ټائپ رائټر او کمپيوټر په ذريعه سره قران ليکل هم صحيح نه دي البته د بې اودسۍ په حالت کې ئې ليکل جائز دي خو شرط دادی چې د قران اياتونو نه لاس نه لګي [حواله بالا جلد ۲ ص ۵۲۲]

## په حائضې باندې د دم کولو حکم

د وظائفو او ورادو کولو دپاره طهارت شرط نه دې، لهذا د طهارت نه بغیر جایز دي چې کله د دم کونکې طهارت ضروري نه دې نو چې په چادم اچول کیږي نو د هغه طهارت په طریقه اولی ضروري نه دې. [حواله بالا ۲ ص ۵۲۸]

## د حیض په حالت کې د قران تلاوت کول

د حیض په حالت کې د قران تلاوت منع دی البته بطور دعا د قران الفاظ ویل جایز دي په دې حالت کې د قران حافظې ته پکار دي چې د ژبې خوزولو نه بغیر په زړه او ذهن کې تلاوت کوي او که څه ترې هیر شي. نو قران کریم دې په څه کپړه اونیسي او کورئ.
[اپکے مسائل اور ان کا حل جلد ۲ ص ۱۷]

## د حیض په حالت کې په امتحان کې د قران د ایاتونو جواب څنګه اولیکل شي؟

په خاص ایامو کې په امتحان کې د قراني ایاتونو د ترجمې اوتشریح لیکلو اجازت شته. خو دایت کریمه متن دې نه لیکي بلکې د ایت حواله دې ورکړي او ترجمه دې اولکي.
[حواله بالا جلد ۲ ص۱۷]

## عام ښځې او استاذانې د حیض په حالت کې تلاوت څرنګه اوکړي

ښځو ته د حیض په حالت کې د قران کریم تلاوت کول او قران ته لاس لګول جائز نه دي برابره خبره ده چې مکمل ایت وي یا څه کم وي البته د قران کریم هغه ایاتونه چې د دعا یا اذکارو په توګه ویلې

شي هغه د دعا یا ذکر په توګه ویل جائز دي مثلاً د خوراک په وخت کې بسم الله ویل یا الحمد لله ویل ، همدغه شان د قران کریم هغه کلمات چې په عامو خبرو کې راځي هغه ویل هم جایز دي او د قران ښودونکو معلماتو ته هم دغه حکم دې باقي پاتې شوه دا خبره چې: تعلیم سلسله به څنګه جاري ساتي نو ددې دپاره فقهاؤ یوه طریقه ښودلې ده هغه داده چې د قراني ایاتونو کلمه جدا جدا اوائي مثلاً الحمد ....لله .... رب.... العالمین دغه شان د قران معلمې دپاره د قران الفاظو هجاء سره ویل جایز دي خو د حیض په حالت کې د قران تلاوت اوریدل منع نه دي. [حواله بالا جلد ۲ ص ۷۲]

## د حیض په حالت کې نکاح کول

د حیض په حالت کې نکاح کول صحیح دي خو د خاوند او ښځې یو ځای کیدل صحیح نه دي رخصتي به ددې ایامو د ختمیدو نه روسته کیږي. [حواله بالا جلد ۵ ص ۲۷]

## د حیض په حالت کې د اذان جواب

دحیض او نفاس په حالت کې د اذان جواب ورکول صحیح نه دي [فتاوىٰ حقانیه جلد ۳ ص ۲۷]

## د خنثی مشکل سره نکاح

د خنثی مشکل سره نکاح جائز نه ده. [حواله بالا جلد ۴ ص ۳۲۸]

## د شنډې ښځې سره نکاح کول

د شنډې (چې بچي ئي نه کیږي) سره نکاح کولو کې بعض فائدې حاصلیږي ځکه په نکاح کولو کې څه حرج نشته او د نکاح غټ

مقصد اولاد دی ځکه د شنډې نه علاوه د بلې صحیح او قابل اولاد ښځې سره نکاح افضل دې احواله بالا جلد ۸ ص ۳۲۴]

## د حاملې ښځې سره نکاح

که یوه ښځه حامله وي نو د بچي تر پیدا کیدو پورې ورسره نکاح کول جائز نه دي او که د زنا د وجې نه حامله وي نو په دې صورت کې که څه هم نکاح جایز دې خو جماع جایزه نه ده کم نکاح ئې د زاني نه علاوه د بل چا سره شوې وي او که هم دې زاني سره نکاح اوشو نو بیا جماع هم جایزه ده. احواله بالا جلد ۴ ص ۳۳۰]

## د کومې ښځې سره نکاح کول غواړي د هغې یو نظر کتل

چې د کومې ښځې سره د نکاح کولو اراده وي هغه یو نظر کتل جائز دي. برابره خبره ده چې پخپله ئې اوګوري یا په بله ښځه ئې اوګوري ددې نه د زیاتو تعلقاتو جوړول مخکې د نکاح نه جائز نه دي نه د خبرو کولو اجازت شته او نه د خلوت او یو اخې کیدلو اجازت شته. د نکاح نه مخکې میلاویدل غیر اخلاقي حرکت دې.

احواله بالا جلد ۵ ص ۳۴]

## ایا په ډانس (ګډیدو) سره نکاح ماتیږي

په واده کې په ډانس کولو سره نکاح نه ماتیږي البته دا کار حرام دی نو کول یې نه دي پکار. احواله بالا جلد ۵ ص ۱۸۲]

## دوهم واده د خپلې ښځې د اجازت نه بغیر جائز دې

که رومبې ښځه په دوهم واده باندې راضي نه وي نو بیا هم دوهم

Scanned with CamScanner

واده کول جائزدي البته په دواړو کې پوره پوره انصاف کول پکار
دي افتاوی دارالعلوم دیوبند جلد ۷ ص ۱۵۰

## ښځو دپاره د اذان جواب ورکول

د اذان جواب لکه څرنګه سړي ورکوي همدغه شان ښځې ئې هم
ورکولې شي بلکه د ښځو دا دیني ذمه داري جوړیږي چې د اذان
جواب ورکوي احواله بالا جلد ۳ ص ۱۲۷

## د انجکشن په ذریعه سره څناور حامله کول

په څناورو کې د نسب لحاظ ساتل ضروري نه دي ځکه چې مور په
څناورو کې اصل ده او بچې په حلت او حرمت کې د مور تابع وي په
دي وجه د څناورو د نسل دپاره انجکشن لګول څه بد کار نه دی
احواله بالا جلد ۲ ص ۱۲۹۹

## د خاوند د محبت پیداکولو دپاره د تعویذ استعمال

د خاوند او ښځې د اصلاح دپاره عملیات یا تعویذات استعمالول
شرعا قبیح نه دي خو شرط دادی چې خاوند خپل غلام جوړول
مقصود نه وي بلکې دعدم موافقت نه د بچ کیدو نیت سره وي د
فتاؤ په کتابونو کې چې کومه د عدم جواز فتوی موجوده هغه د غیر
شرعي تعویذاتو یا تسخیراتو د وجي نه ده یا په غلط نیت باندی
محمول ده احواله بالا جلد ۲ ص ۱۴۰۱

## د بلوغت نه روسته د ختنه کولو په وخت کې په شرمګاه باندې نظر پریوتل

د بالغ کیدو نه روسته ختنه کولو کې که نظر په شرمګاه پریوځي نو دا نظر جائز دې ځکه چې ختنه د اسلام د شعائرو نه ده او هر مسلمان باندې لازمه ده. احواله بالا جلد۸ ص ۱۴۲۲]

## د غسل کولو په وخت کې د اوبو په لوښي کې د اوبو مستعمل قطرې پریوتل

که د غسل کولو په وخت کې د اوبو استعمال شوې قطرې به لوښي کې پریوځې نو که د اوبو په دې قطرو کې ظاهري نجاست نه وي یعني په دې قطرو سره د ظاهري نجاست ازاله نه وي شوي نو په لږ قطرو پریوتلو سره اوبه نه ناپاکه کیږي ځکه چې ددې نه ځان ساتل د انسان په طاقت کې نه دي بیا هم ممکنه حد پورې احتیاط کول پکار دي. [احواله بالا جلد ۲ ص ۵۲۹]

## د جنبي خوله

د انسان خوله په هر حالت کې پاکه ده برابره خبره ده چې د جنابت په حالت کې وي یا نه وي البته که په کوم اندام باندې ظاهري نجاست وي او خوله یې په کپړه باندې اولګي نو کپړه به ناپاکه شي.
احواله بالا جلد ۲ ص ۵۷۰]

## د استنجا نه د عاجزه شوي حکم

چې کوم سړی پخپله د استنجا کولو نه عاجزه وي د بیمارۍ د وجې نه یا یې لاسونه کټ وي او ښځه یا وینځه یې هم نه وي او پخپله په

هیڅ یو، طریقه په استنجا قادره نه وي نو د داسې سړي دپاره استنجا معاف دہ، البته که صرف په یو لاس عاجزه وي نو په بل لاس څومره چې ممکنه وي استنجا به کوي

[حواله بالا جلد ۲ ص ۵۹۷]

## د جرم د اثبات دپاره د تصویر حکم

که یو سړی زنا کوي او بل څوک ئې تصویر اوباسي نو تصویر او ددغه سلسلې نور نوي څيزونه په نن صبا وخت کې بالکل نظرانداز کولې نشي. او دا ذرایع ترکافي حده پورې د جرم په ثابتولو کې کار ورکوي خو شرط دادی چې نور زرایع او علامات ددی تائید کوي ځکه چې نن صبا به په تکنیکي دور کې په تصویرونو کې د جعلسازۍ قوي امکان موجود وی د یو سړي په بدن باندي د بل سر لګولې شي وغیره ډیرې نخرې کیږي نو مذکوره تصویر که څه هم په کلي طور سره د جرم ثابتولو دپاره کافي نه دی خو دا بالکل پریخودلې هم نشي ددی وجې نه که ذرایع ددی په تائید کې نه وي او قاضي ته په مجرم باندې یقین وي نو په دې مجرم باندی کم نه کم تعزیر جاري کولې شي احواله بالا جلد ۵ ص ۵۱۲]

## د اثبات جرم دپاره ریکارډ کافي نه دی

د تیپ ریکارډ او موبائیل وغیره په ذریعه سره ریکارډ شوي بیان سره د زنا قتل وغیره جرم نه ثابتیږي ځکه چې شرعا د ګواهانو د قاضي په مخامخ عدالت کې ګواهي ورکول ضروري دي او قاضي ته دا اختیار حاصل نه دې چې صرف د ریکارډ په بنیاد سره څه فیصله اوکړي ځکه چې د یوسړې اواز د بل مشابه کیدلای شي

احواله بالا جلد ۵ ص ۱۵۲]

## د حلالې په نکاح کې د ساتي (ربړ) استعمال

د حلالې په نکاح کې که څوک د جماع وخت ساتي استعمال کړي نو که د ساتي سره دې محلل ته لذت محسوس شي نو حلاله کيږي او که محسوس نه شي نو نه کيږي. ځکه چې په حلاله کې د سړي د ذکر داسې داخليدل ضروري دي چې دواړو ته لذت او خوند محسوس شي. انزال ضروري نه دې. احواله بالا جلد ۴ص ۲۵۲]

## د حلالې په وخت انزال ضروري نه دی

په شرعي حلاله کې ايلاج (د حشفې داخلول) ضروري دي او هغه هم داسې چې ذکر ولاړ وي دې دپاره چې محلل ته څه لذت او خوند محسوس شي. البته انزال کول ضروري نه دي.

احواله بالا جلد ۴ص ۴۴۳]

## په نابالغ باندې د حلالې شرعي حکم

د حلالې دپاره د محلل (حلاله کونکي) بالغ کيدل ضروري نه دي. صرف په جماع باندې قادره کيدل يې ضروري دي نو که نابالغ مراهق يعنې قريب البلوغ وي او جماع کولې شي نو حلاله ئې صحيح ده. احواله بالا جلد ۴ ص ۵۵۴]

## په دبرکې جماع کولو سره حلاله

د شرعي حلالې دپاره ضروري ده چې په مخکې طرف کې جماع اوشي، په روسته طرف کې بدکاري کول د حلالې دپاره کافي نه دي او هسې هم دا عمل ګناه کبيره ده. احواله بالا جلد ۴ ص ۵۵۴]

## د ټیسټ ټیوب بې بې شرعي حیثیت

د ټیسټ ټیوب بې بې ... په ذریعه سره د ښځې رحم ته مني
نن صبا د یو خاص انجکشن په ذریعه سره د ښځې رحم ته مني
رسولې شي دې سره بیا بچې پیدا کیږي دیته ټیسټ ټیوب بې بې
وایي، یا تلقیح صناعي ورته وائي . دا په ډیره مفاسدو باندې د
مشتمل کیدو فحاشۍ او بې دینۍ ذریعه جوړیدو د وجې په اتفاق
د علماؤ سره جائز نه ده. بیا هم که د چا اولاد نه پیدا کیږي او په
ښځه او خاوند کې د اولاد صلاحیت موجود وي خو خاوند د څه
وجې نه خپله مني د ښځې رحم ته نشي رسولې یا د ښځې په رحم کې
د امساک او استقرار صلاحیت نه کیدلو د وجې نه د بچي
پیدا کیدل ممکن نه وي نو په دې صورت کې دا مذکوره مطنوعي
نسل کشي جائز کیږي خو شرط دادی چې مني د ښځې د خپل
خاوند وي د دواړو په رضامندۍ سره وي او د دواړو مخامخ دا کار
کیږي او ماهر مسلمان ډاکټر دا طریقه تجویز کړي.

[حواله بالا جلد ۴ ص ۵۵۸]

## د خاوند د تولید ماده د بلې ښځې رحم کې لویدل

د تولید په نوې طریقه کې داسې کیږي چې د خاوند او ښځې مني
میلاؤ کړل شي. او د ټیوب په ذریعې سره د بلې ښځې په رحم کې
کیښودل شي، اودا مخلوط مني د هغې په رحم کې غټیګي تردې
چې ماشوم شي. نو په دیکې د نسب ثبوت مسئله راځي چې نسبت
به د چانه ثابتیږي نو د نسب د ثبوت دپاره ابتدائي وخت کې د
خاوند او ښځې د نطفو اختلاط کافي دې نو چونکې په مذکوره
صورت کې د خاوند او ښځې د نطفو په ابتدائي وخت کې اختلاط

شته او ددې نه بیا یوه علقه پیدا شي. او بیا د اجنبي په رحم کې
واچولې شي، نو د نسب د ثبوت دپاره تر اختلاط پورې زمانه کافي
ده بقیه د اجنبیه ښځې په منزله د مرضعه (پې ورکونکې) ده. ددې
ماشوم حقیقي مور او پلار هم هغه دي چې د چا نطفه وي

[حواله بالا جلد ۴ ص ۵۵۹]

## هوا خارجولو باندې صرف اودس دی استنجاء نشته

که د چا نه هوا خارجه شي. نو صرف اودس کول کافي دي دوړو او
غټو بولو کولو نه بغیر استنجا کول بدعت دي

[آپکے مسائل جلد ۲ ص ۷۳]

## ښځه به د سر په کټ شوؤ ویښتانو څه کوي ؟

چې کله ښځه په سر کې ږومنز (منګز) کوي نو په ږمنز کو. څه ویښان
پاتي کیږي دا غورځول نه دي پکار. ځکه چې د ښځو ویښتان په
سترکې داخل دي دا ویښتان چرته دفن کول پکار دي.

[حواله بالا جلد ۲ ص ۷۳]

## په نوکونو پالش لګول د کفارو تقلید دې

چې کومې ښځې په نوکانو پالش لګوي نو دهغوی په نوکانو باندې
د پالش نه پترې جوړیګي او او به ورسره لاندې نه رسیږي نو ترکومه
پورې چې دا صفا نشي. نو اودس او غسل یې نه کیږي

[حواله بالا جلد ۲ ص ۷۴]

## د ناپاکۍ په حالت د قراني اياتونو والا د تعويذ استعمال

چې په کوم کاغذ ايت ليکلې وي هغه د ناپاکۍ په حالت کې مسح کول جائز نه دي خو که په کپړه وغيره کې دننه وي نو بيايې مسح کول جائز دي ددينه معلومه شوه چې د ناپاکۍ په حالت کې د تعويذ استعمال جائز دی چې کله په کپړه وغيره کې دننه وي.

[حواله بالاجلد ۲ ص ۷۸]

## په بيت الخلا کې کلمه په ژبه ويل

په تشناب او بيت الخلا کې دعا په ژبه سره ويل جائز نه دي.

[حواله بالا جلد ۲ ص ۸۰]

## د داسې لاکټ سره بيت الخلاته داخليدل په کوم باندې چې د الله نوم ليکلې وي

نن صبا خوانان په غاړه کې قسما قسم زنځيرونه اچوي په بعضې باندې د الله نوم يا بل څه مقدس کلمات وي نو دداسې زنځير سره بيت الخلا ته داخليدل نه دي پکار بلکې اوباستل يې پکار دي [حواله بالا جلد ۲ ص ۸۰]

## د سپي توکانړي نجس دي

د سپي توکانړي نجس دي ددې وجې نه چې کوم ځاى د سپي توکانړي اولګي هغه صاف کول پکار دي. [حواله بالا جلد ۲ ص۸۰]

## د نجسې وازګې صابن

د ناپاکې وازګې استعمال، جائزدی البته دداسې صابون استعمال

جائز دی کوم کې چې ناپاکه وازګه میلاو شوې وي خکه چې د صابون جوړیدلو نه روسته ئې ماهیت بدلیګي

## د بیوټي پالر شرعي حثیت

ښځوته د زینت او سنګار کولو اجازت شته خو شرط دادی چې په حدود کې دننه وي په موجوده دور کې چې کومه بیوټي پالرو پیشه ده په دې ډیر قباحتونه دي چې ددې د وجې دا حرامه ده. هغه قباحتونه مختصرا دادي.

[۱]بعض ځایونو کې دا کارسرې کوي چې خالصتا بې حیائي ده.

[۲]داسې ښځې په بازارونو کې د خپل زینت نمائش کوي او داهم بې حیائي ده.

[۳]د بیوټي پالرکولو نه روسته په هلک او جینۍ کې فرق کول مشکل وي حالانکې د سړو د ښځو سره او د ښځو د سړو سره مشابهت موجب لعنت دې.

[۴]عام تجربه داده چې دداسې کاروبار کونکو خلقو ددین او ایمان سره هیڅ واسطه نه وي ددې وجې نه دا ظاهري زینت او سنګار د باطني بیګاړ او فساد ذریعه هم ده. [حواله بالا جلد۷ص۱۳۷]

## د ښځو دپاره ویښتان کټ کول

د ښځو دپاره د سر ویښتان کټ کول جائز نه دي.

[حواله بالا جلد ۷ ص ۱۳۱]

## د جینکو غټ نوکان پریخودل

د نوکانو متعلق شرعي حکم دادی چې که هره هفته نه وي نو په

بینخاسمه ورخ دې نوکان کټ کوي که څلویښت ورځې تیرې شوې او نکان چا کټ نه کړل، نو ګناه ده هم دغه حکم د هغو ویښتانو دی کوم چې صاف کولې شي، په دې حکم کې ښځه او سړی دواړه برابر دي. [حواله بالاجلد ۷ ص ۱۳۵]

## ایا د خوان سړي خته کول جائز دي

ختنه کول د صحیح قول مطابق سنت او د اسلام نښه ده که والدینو په ورکوالي کې ونکړه نو د والدینو تساهل د ملامت لائق دې خو پخپله په دې سړي باندې څه ګناه نشته. د خوان کیدلو نه روسته که برداشت لري نو کول یې پکار دي. او که برداشت نه لري نو خیر دی، او نن صبا خو سرجرۍ او ډاکټرۍ دومره ترقي کړیده چې د ختنې د نه برداشت کیدو سوال نه پیدا کیږي باقي د ختنه نه کولو باوجود هم دا سړې مسلمان دی چې کله د الله او رسول احکامات په زړه سره مني. [حواله بالا جلد ۷ ص ۱۳۹]

## په ښځې ډاکټرې باندې ختنه کول

په ښځه ډاکټره باندې ختنه کول شرعاً څه ګناه نه ده. خو چې کله ماشوم وي یا غټ سړي ختنه کول د ښځې دپاره جایز نه دي. [حواله بالا جلد ۸ ص ۵۱]

## د برقعې د کپړې رنګ

ښځه د برقعې دپاره هر قسم کپړه استعمالولې شي اصل څیز د بدن پټول دي. [حواله بالا جلد ۸ ص ۵۵]

Scanned with CamScanner

## په اپریشن سره د ولادت نه روسته د نفاس حکم

کله کله د څه سختۍ مجبورۍ د وجې نه په اپریشن سره ماشوم پیدا کیږي نو په دې صورت کې د نفاس حکم دادی چې د اپریشن نه روسته چې کوم وینه د رحم نه جاري شي هغه به نفاس شمارل کیږي او که صرف د اپریشن د زخم نه وینه وځي او د رحم نه نه وځي نو بیا دا نفاس نه دي مونځ وغیره نه ساقط کیږي.

اخیر الفتاوی جلد ۲ ص ۱۴۲

## د سرې دپاره دنداسه استعمالول

سرې دپاره د زینت دارادې نه بغیر صرف د صفائي دپاره دنداسه استعمالول جائز دي. [احسن الفتاوی جلد ۸ ص ۲۸]

## مصنوعي ویښتان لګول

بعضې ښځې مصنوعي ویښتان دخپلو ویښتانو سره لګوي. که دا ویښتان د انسان وي نو ددې لګول ګناه کبیره ده. په حدیث کې په دې باندې لعنت راغلې دی. که د بل څه څناور وي نو جائز دي.
[احسن الفتاوی جلد ۶ ص ۷۵]

## د شندې چیلۍ پۍ استعمالول

که یوه چیلۍ بغیر د بچي د پیدا کیدو نه پۍ شروع کړي نو څکل یې حلال دي [حواله بالا جلد ۶ ص ۱۲۴]

## په یوه بستره باندې د دوو نفرو اوده کیدل

د لسو کالو او د لسو نه د زیات عمر والا کسانو په یوه بستره اوده

کیدل جائز نه دي برابره خبره ده چې دواړه سرې وي یا دواړه ښځې یا یوه ښځه وي او بل سړی او برابره خبره ده چې یو نفر یو طرف او بل بل طرف ته وي چې کله په مینځ کې د څه کېړې رکاوټ نه وي که څه د کېړې وغیره رکاوټ وي نو بیا مکروه تنزیهي دي البته هلک د خپل پلار سره اوجینۍ د خپلې مور سره اوده کیدې شي.

[حواله بالا جلد ۲ص ۱۷۱]

## په غسل خانه کې متیازې کول

په غسل خانه کې متیازې کول جائز دي چې کله فرش پوخ وي او په متیازو اوبه واچولې شي چې اوبهیږي خوبچ کیدل بهتر دي ددینه د وسوسې پیدا کیدلو یره ده. [حواله بالا جلد ۸ ص ۱۸۲]

## د انجکشن په ذریعه پۍ ایستل

د غواګانو اومیښو والا اکثر غواګانواو میښو ته یو انجکشن لګوي چې په هغې سره غوا میښه پوره پۍ غولانځې ته راکوزوي او بیا په اسانۍ سره ایستلې شي. دا طریقه جائزه ده ځکه چې الله تعالی ځناور د انسان دفائدې دپاره پیدا کړي دي نو د دوی نه فائده اخیستل جائز دي چې کله دوی ته څه تکلیف نه وي.

[حواله بالا جلد ۸ ص ۲۲۳]

## د مور او پلار د ګناهونو د معاف کولو طریقه

چې د چا موراو پلار د ګناهونو ژوند تیر کړی وي او دا هم پته نشته چې توبه اواستغفار ئې کړی دی که نه، نو د والدینو د وفات نه روسته په اولاد باندی ددوی لاندیني حقوق دي.

Scanned with CamScanner

[۱]د هغوی دپاره دعا او استغفار کوي. [۲]مور او پلار د چا سره څه وعده کړي وي نو هغه پوره کولو نه مخکې وفات شوي وي هغه وعده پوره کول. [۳]د والدینو د خپلوانو سره صله رحمي او د تعلق والو خلقو سره ښه سلوک کول د څه شرف قید نه بغیر د بدني او مالي عبادت ایصال ثواب کول. په دې څیزونو سره به د هغوی ګناهونه ان شاالله معاف کیږي او په عذاب کې به یې سپکوالې راځي [حواله بالاجلد ۹ ص ۲۸]

## د ډیرو خاوندانو ښځه به قیامت کې چاته میلاویږي

چې کله یوې ښځې د ډیرو خاوندانو سره نکاح کړي وي یعني د یو د وفات نه روسته د بل سره او دبل د وفات نه روسته د بل سره . نو په بعض روایاتو کې راځي چې په جنت کې به دا ښځه اخري خاوند ته میلاویږي او د بعض روایاتو نه معلومیږي چې ښځې ته به اختیار ورکولې شي چې د کوم سره یې ډیر موافقت وي هغه به اختیار کړي او بعض حضراتو دافیصله کړې ده چې که ټول خاوندان په ښواخلاقو کې برابر وي نو اخري ته به میلاویږي وګرنه اختیار به ورکولې شي [حواله بالا جلد ۹ ص ۱۴۳]

## باکرات (چې واده ئې نه وي کړې) او مطلقات به چاته میلاویږي؟

باکراتو او مطلقاتو ښځو ته به په جنت کې اختیار ورکولې شي: چې څوک ئې خوښ وي که څوک یې هم خوښ نه وي نو الله تعالی به ورته مذکر حور پیدا کړي. [حواله بالا جلد ۹ ص ۱۴۴]

Scanned with CamScanner

## د لیوني د طلاقو حکم

که لیوني خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو نو نه واقع کیږي ځکه چې د طلاقو د واقع کیدلو دپاره د خاوند عاقل او بالغ کیدل شرط دي او مجون چونکې د عقل د نعمت نه محرومه دې ځکه ئې د طلاق اعتبار نشته. افتاوی حقانیه جلد ۸ ص ۱۴۴۲

## د لیوني نه د جدا کیدو طریقه

د لیوني طلاق نه واقع کیږي ددی نه د ښځې د جدائې صورت دادی چې لیونې که مطبق وي یعني د کال اکثره وخت په لیونتوب کې تیروي افاقه بالکل ورته نه کیږي یا ډیره لږه کیږي او بیا لیونې کیږي چې د هغه نه د دسخت نقصان یره وي یا د ګزارې څه صورت نه وي نو د وخت حاکم به د ښځې نکاح فوراً فسخ کړي او که لیونتوب مطبق نه وي نو خاوند ته به یو کال مهلت د علاج دپاره ورکړي په کال کې که صحیح شو نو صحیح ده ورنه تفریق به کولې شي. بیا که جماع یا خلوت صحیحه شوې وي نو د عدت تیرولو نه روسته به دا ښځه بله نکاح کوي افتاوی محمودیه جلد ۲ ص ۹۲]
که چرته مسلمان حاکم بااختیاره نه وه یا د شریعت موافق فیصله نه کوي نو د یو څو معززو او دیندارو خلقو ډله داکار کولې شي. خوشرط دادی چې په ډله کې یو داسې عالم موجود وي چې په معاملاتو خبر وي د عرف نه خبر وي او په علم کې پوخ وي.
احواله بالا ج۲ص ۱۴۷

## د طلاق په نیت سره چا ښځې ته اویل ته مې پریخودې

که خاوند ښځې ته د طلاق په نیت سره اویل چې ته مې پریخودې نو

به دې سره یو طلاق بائن واقع شو دوباره به نکاح کوي
[دارالعلوم دیوبند جلد۹ ص ۲۷۲]

## ته په ما باندې حرامه یې؟

خپلې منکوحې ته داویل چې ته په ماباندې حرامه یې. طلاق کنائي دې. په دې سره د طلاق واقع کیدل په نیت موقوف دي که خاوند د درې طلاقو نیت اوکړو نو درې به واقع کیږي او که د دریو نیت نه وي صرف دا اراده یې وي چې ښځې ته طلاق ورکوم نو بیا یو طلاق بائن واقع کیږي او که ډیر کرته یې دا لفظ استعمال کړو . او د طلاقو نیت وي نو یو طلاق بائن به واقع شي دویم او دریم به لغوه وي [فتاوی حقانیه جلد ۴ ص ۴۷۸]

## د غلې پیسې په پته مالک ته واپس کول

که چا د بل نه روپۍ پټې کړې وي اوس که دا پیسې په څه طریقه سره مالک ته اورسوي نو د مواخذې نه به بري وي مالک ته د ویلو ضرورت نشته. [دارالعلوم دیوبند جلد ۱۲ص ۲۰۷]

## چې کومه ښځه د زنا نه حامله وي د هغې عدت

د زنا د وجې نه د حاملې ښځې دپاره هیڅ عدت نشته . خو خاوند دې د جماع کولو داپاره د یو حیض تیریدو انتظار اوکړي چې چرته حامله نه وي که حامله وي نو د بچي پیدا کیدو پورې ورسره جماع کول جائز نه دي. [حواله بالا جلد ۴ ص ۱۵۴۴

## په عدت کې په واده یا مړي کې شریکیدل

د معتدې دپاره بغیر د ضرورت نه د عدت د مکان نه وتل او په خوشحالي یا غم کې شریکیدل صحیح نه دي.

[ادار العلوم دیوبند جلد ۱۰ص۲۰۹]

## د معتدې د علاج دپاره وتل

که ډاکټر کورته نه راځي نو د سختې بیمارۍ د وجې نه معتده د کور نه بهر وتلې شي

## په عدت کې به میاشتې شمارکیږي که ورځې

که د ښځې خاوند د اسلامي میاشتې په رومبي تاریخ مړ شوې وي نو عدت به په میاشتو سره شمار کیږي ورنه ۱۳۰ ورځې به شمار کیږي [احسن الفتاوی جلد ۵ص۴۴۸]

## د نابالغ د څناور سره بدکاري کول

که د لسو یا یولسو کالو نابالغه ماشوم د میښې وغیره سره بدکاري اوکړه، نو والدینو یائې چې څوک مشر وي هغه ته به اوپل شي. چې د اداب ښودلو دپاره ورته څه سزا ورکړه خو په لرګي به ئې نه وهي، بلکې په لاس یا څپلۍ سره به سزا ورکوي او په نازک ځای لکه په مخ به یې نه وهي او ډیر زیات به ئې هم نه وهي. او څناور د سوزولو چې کوم حکم دی هغه د بالغ سره خاص دي

[امداد الاحکام جلد ۴ ص ۱۲۵]

Scanned with CamScanner

## د ښځې سره په داسې حالت کې جماع کول چې ماشوم ئې په سنګل اوده وي

چې کله ښځه او خاوند په یوه بستره اوکټ کې اوده وي او ورسره داسې نابالغه پوهه ماشوم اوده وي چې د اوده کیدلو نه روسته ورته څه خبر نه وي نو په داسې ځای کې جماع کول جائز دي. او که په خوزیدو سره بیداره کیږي نو بیا په داسې ځای کې جماع کول جائز نه دي چې کله ماشوم په دې پوهیږي. [حوالدبالا جلد ۴ ص ۴۰۴]

## د علاج دپاره د ښځې سر خریل

که د ښځې په سرکې بیماري وي او ډاکټروائي چې ددې علاج به د سر خریلو نه روسته کیږي نو په داسې صورت کې که بغیر د خریلو نه علاج مفید نه وي نو مجبورا د سر په خریلو اجازت شته.

## د متیازو دا فلټرکولو حکم

که د یو شي حقیقت بدل شي نو احکامات ئې بدلیږي او که صرف اجزائې په څه وجه جداجدا کړلې شي نو په دې سره احکام نه بدلیږي مثلا غټ بول چې اوسزیګي او ایره تړې جوړه شي . نو حرمت او ناپاکي ئې ختمیږي. که په څه طریقې سره ددې بعض اجزاء اباستل شي . چې بوئې ختم شي نو ددې باوجود ئې ناپاکي نه ختمیږي، د متیازو د فلټر کولو سره متیازې د خپل حقیت نه نه اوځي بلکه د متیازو بدبوداره اجزاء اوباستل شي څکه به دا ناپاکه وي د دې د اودس او غسل دپاره استعمالول جائز نه دي او که د بدن څه حصې ته اولګي نو ناپاکه کیږي [جدید فقهي مسائل ص ۵۲]

## د سپي د ژبې مرهم

غالباً په بعض امراضو کې د سپي د ژبې مرهم استعمالیږي نو دا مرهم ناپاک دي، د سخت ضرورت او د متبادل صورت د عدم موجودګۍ نه بغیر د دې استعمال صحیح نه دی، چې په کوم ځای دامرهم اولګي هغه ناپاک ګیږي. [جدید فقهي مسائل ص ۵۲]

## د جنسي خواهشاتو د تکمیل دپاره د مصنوعي اندامونو استعمال

د مصنوعي اندامونو یا دمصنوعي ښځې او سړي نه فائده اخیستلو کې د فطرت د قانون مخالفت خپلې انتها ته رسیږي ځکه چې کوم سړي لواطت یا جلق (لاس نه کار اخیستل) کوي هغه اتفاقا د خپلو جزباتو د وجې نه داسې کوي خو چې کوم کم بخت خاص دهم دې مقصد دپاره د داسې اندامونو یا مصنوعي انسانانو استعمال کوي هغه ګویا ددې کار د بیا بیا کولو په ارادې سره دا څیزونه اخلي. او دا غیر فطري طریقه ده خپل ژوند دپاره مستقل ملګرې جوړوي بیا ددې په ناجائز کیدو کې څه شبه ده؟ افسوس چې انسانان نن هغه مقام ته رسیدلي دي چې هلته ځناور هم نه دي رسیدلي [جدید فقهي مسائل ص ۱۷۳]

## د جماع په وخت د نرود لوپ استعمال

په موجوده زمانه کې د بچو په تعداد کې کمي دپاره یو مخصوص قسم ربړ استعمالیږي په دې ربړونو کې یو خو هغه ربړ وي چې سړې ئې خپل مخصوص اندام ته اغوندي دیته نرود وائي ، دوهم قسم هغه ربړ دې چې ښځه ئې د خپل رحم په خوله اچوي دې دپاره چې

مني دننه داخله نه شي دیته لوپ وائي نو د نرود اود لوپ استعمال مکروه دې بالخصوص هغه وخت چې کله دا صرف د معاشي تنګی په احساس مبني وي البته که د څه عذر دوجې نه وي نو اجازت شته. مثلا یو ماشوم موجود وي د پیو څکلو والا او دحمل سره د پیو د وچیدولو یره وي یا د حمل کیدو په صورت کې د ښځې صحت ته سخته خطره وي سړي ته پکار دي چې د نرود استعمالولو په وخت کې د ښځې نه اجازت واخلي ځکه چې د نرود سره ښځې ته دومره لذت نه حاصلیږي لکه د نرود نه علاوه.

[اجدید فقهي مسائل صفحه ۱۷۴]

## د نرود په صورت کې د غسل وجوب

د نرود سره د جماع کولو په وخت کې غسل واجب کیږي

[اجدید فقهي مسائل ج ۵ ص ۵۰]

## د حایضې او نفاس والا ښځې مړي ته غسل ورکول

چې کومه ښځه د حیض یا نفاس په حالت کې وي . دهغې مړي ته غسل ورکول مکروه او منع دي [بهشتي زیورص ۱۲۳]



# د ایډز متعلق مسئلې

ایډز یو مرض دې چې د انسان د بدن دفاعي نظام تباه کوي عام طور سره دا مرض د جنسي غلط کارو د وجې نه پیدا کیږي که څوک د ایډز مریض وي او خپل مرض ئې ظاهر کړې نه وي او د یوې ښځې سره ئې نکاح اوکړه نو په دې صورت کې ښځې ته د نکاح د فسخ کولو حق حاصل دې . همدغه شان د نکاح نه روسته که چاته دا مرض لاحق شو. او خطرناک حدته ورسیږي نو د نکاح د فسخ کول حق حاصل دې.

د ایډز بیماره ښځه که حامله شي . او د مستند ډاکټر د رائې مطابق غالب گمان داوي چې ماشوم به هم په دې مرض کې مبتلا کیږي نو په داسې صورت کې په حمل کې د روح راتلو نه مخکې د حمل اسقاط جایز دې چې هغه مدت فقهاؤ ۱۲۰ ورځې ښودلې دي.

د ایډز مریض که دې مرض په پوره گرفت کې اخیستې وي او د ژوند د معاملاتو د اداکولو نه معذوره وي نو داسې سړې به د مرض الموت مریض حسابیږي.

د ایډز د مریض دا اخلاقي ذمه داري جوړیږي چې خپل د کوروالا او متعلقین خبر کړي او پخپله هم احتیاطي طریقه اختیار کړي

د ایډز مریض که خپل مرض پټیدلو باندې د ډاکټر نه اصرار کوي او د ډاکټر په رائې کې ددې مرض پټولو کې ددغه مریض کوروالؤ او متعلقینو ته ددې د ضرر لاحق کیدلو قوي یره وي نو د ډاکټر ذمه داري ده چې د صحت محکمې او متعلقه حضراتو ته اطلاع ورکړي.

د ایډز او په نورو متعدي ابل ته منتقل کیدونکو، امراضو کې د

مبتلا مریضانو د کورو الاؤ او متعلقینو ذمه داري جوړیږي چې دا مریضان یواځې نه پریګدي په طبي لحاظ سره د دوی پوره خیال ساتي. او دوی د علاج معالجه او په نورو تدابیرو کې پوره پوره تعاون اوکړي.
په ایډز کې مبتلا ماشومان د تعلیم نه محرومه کول نه دي پکار.
ضروري احتیاطي تدابیرو سره د تعلیم بندوبست کول پکار دي.
د ایډز د مریض د خپل مرض نه د واقف کیدو نه روسته چا صحت مند انسان ته ددې مرض منتقل کول حرام دي او ګناه کبیره ده.
داسې سړې په معاشرې باندې د بدو اثراتو غورزولو د وجې نه د سزا مستحق دې.
دغه فیصله په مسلم یونیورستي علي ګړه کې په اتم فقهي سمینار کې اوشوه چې په دې باندې د پوره هندوستان د مختفلو دیني مراکزو او مسالکو راهنمائي کونکي علماؤ فقهاؤ او دجدیدو علومو ماهرینو درې ورځې غور او فکر اوکړو او دا فیصله ئې اوکړه چې کومه پورته ذکر شوه. [اهم فقهي مسائل صفحه ۸۷]

## د هغې ښځې سره نکاح چې اندامونه ئې میلاؤ وي پیوسته وي

که یوه ښځه پیدائشي طور سره داسې وي چې ټول اندامونه ئې پیوسته وي او په اپریشن سره ددې اندامونه د یوبل نه جدا کول ممکن نه وي نو سوال دادې چې ددې ښځې وجود د دوؤ ښځو مجموعه ده نو ددې نکاح به څنګه کولې شي. په دې کې درې صورتونه ممکن دي.
دواړه د یو سړي په نکاح کې ورکړې شي. په دیکې قباحت دادې چې یو سړي په نکاح کې به دواړه جمع شي. او قران کریم ددې نه

صراحتا ممانعت کړې دې

دوهم صورت دادې چې دواړه د جداجدا سړو په نکاح کې ورکړې شي ددې قباحت د رومبي صورت نه هم ډیر دې ځکه چې کله دوه ښځې یو ځای وي نو دخپلې ښځې نه علاوه د بلې ښځې سره د زنا امکانات پیدا کیږي

دریم صورت دادې چې ددې بلکل نکاح اونشي مولانا اشرف علي تهانوي دې صورت ته ترجیح ورکړیده او بعض اهل علمو رومبې صورت اختیار کړې دې [جدید فقهي مسائل ص۱۵۲]

## د جنس د تبدیلۍ نه روسته احکامات

د جنس تبدیلي (د ښځې نه سړی جوړیدل او د سړي نه د ښځې جوړیدل) حرام او موجب لعنت دي خو که چا داسې اوکړل او د هغه جنس تبدیل شو او واقعي د ښځې نه سړی جوړ شو، نو د سړو احکامات به په دې باندې جاري کیږي او که د سړي نه ښځه جوړه شوه نو د ښځو احکامات به پرې جاري کیږي

[آپکے مسائل جلد ۸ ص ۴۰۴]

## د شهوت کمونکې دوايانې

که چاته په ګناه کې دمبتلا کیدو یقین یا غالب ګمان وي نو روژه نیول ورته پکار دي په دې سره به شهوت کې کمې راشي، خو که څوک داسې نشي کولې او شهوت پکې ډیر وي چې د زنا یره وي نو په دې صورت کې د جماع خواهش عارضي طور سره ختمولو یا کمولو دپاره د دوائي استعمالولو اجازت شته اعلاج او معالجه کے شرعي احکام ص۱۴۳]

## په فرج کې ګوته داخلول

که یو سړي خپل خواهشات د ذکر نه علاوه په بل شي سره پوره کوي مثلاً په فرج کې ئې ګوته وهي نو مفتي محمودالحسن صیب لکلي چې فرج د ګوتو د داخلولو او لوبیدلو ځای نه دی او ګوته د جماع آله نه ده. که دا سړې عنین (نامرد) وي جماع نشي کولې. د خپلې ښځې حق نشي اداکولې نو طلاق دې ورکړي دې دپاره چې هغه خان ته بل انتظام اوکړي. [فتاوی محمودیه جلد ۲۹ ص ۱۴۳]

## په بیت الخلا کې خبرې کول

په بیت الخلا کې د قضاء حاجت د حالت نه علاوه هم خبرې کول صحیح نه دي مثلاً څوک په بیت الخلا کې اودس کوي نو تسمیه او نورې دعاګانې به نه وايي دغه شان بغیر د ضرورت نه توخي کول هم مکروه دي. [فتاوی عثماني جلد ۱ ص ۳۱۳]

## د طهر متعلق یو څو بنیادي خبرې

**د طهر حقیقت:** د طهر معنی په لغت کې پاکي ده او د شریعت په اصطلاح کې د حیض او نفاس په مقابلې کې پاکې ته طهر وائي. یعني چې کله په یوه ښځه د حیض او نفاس حالت نه وي نو د پاکې مودې ته په شریعت کې طهر وائي.

**دطهر موده:** د طهر کم نه کمه موده پینځلس ورځې او پینځلس شپې (۳۶۰ ګنټې) دي او د زیاتې مودې څه حد نشته ددې وجې نه که چرته د پینځلسو ورځو شپو نه زیاته څومره موده د حیض او نفاس وینه رانشي هغه پوره موده به په طهر (پاکي) کې شمارکیږي.

Scanned with CamScanner

# د طهر قسمونه

د طهر بنیادي توګه سره دوه قسمونه دي: طهر صحیح. طهر فاسد.
بیا د طهر فاسد دوه قسمونه دي: طهر تام، طهر ناقص

**طهر صحیح**: د حیض د دوه وینو یا د حیض او نفاس د وینو په مینځ کې که د پاکې موده پینځلس ورځې او شپې یا ددې نه زیاته وه او دپاکې په درې ورځو په شروع مینځ او اخر کې د استحاضې وینه نه وه نو د پاکي داسې مودې ته طهر صحیح وائي.

**د طهر صحیح مثال**: یوې ښځې ته څلور ورځې وینه راغله بیا شپاړس ورځې ورله هیڅ وینه رانغله بیا څلور ورځې وینه راغله نو د شروع او اخر څلور څلور ورځې به د حیض شمارل کیږي او په مینځ کې شپاړس ورځې به د طهر صحیح شمارل کیږي.

**د طهر صحیح حکم**: دادی چې ددې طهر د وجې نه دواړه وینې جداجدا شمارل کیږي او دا ښځه به د طهر په اعتبار سره معتاده (عادت والا) وي.

**طهرفاسد (تام)**: د حیض د دوه وینو یا د حیض او نفاس د وینو په مینځ کې د پاکې موده د پینځلسو ورځو او شپو یاددې نه زیاته وي خو دپاکۍ ددې ورځو په شروع مینځ یا اخر کې د استحاضې وینه هم راغلې وي یا ددې طهر مخکې او روسته راتلونکې دواړه وینې یا په دواړو کې څه وینه صحیح نه وي نو دپاکې داسې موده طهر فاسد تام شمارل کیږي. (دېته حکمي پاکي هم وائي.

**د طهر فاسد تام مثال**: د پاکې په شروع کې د استحاضې وینه وي لکه مبتدا (چاته چې اول ځل د حیض وینه راغلې وي) دېته یولس

ورځې وينه راغله او بيا تر پينځلسو ورځو پورې رانغله په دې صورت کې لس ورځې د حيض دي او شپاړس ورځې د پاکۍ دي چې په شروع کې ئې يوه ورځ د استحاضې ده، لهذا د دې شپاړسو ورځو طهر ته طهر فاسد تام ويل کيږي.

**د طهر فاسد تام حکم:** د دې طهر د وجې نه دواړه وينې جدا جدا شمارل کيږي خو د دې د وجې نه ښځه د طهر په اعتبار سره معتاده (عادت والا) نه جوړيږي يعني دا طهر د راتلونکي خل دپاره عادت او معيار نه دی.

**طهر فاسد ناقص:** دې طهر ته طهر متخلل هم وائي د حيض د دوه وينو يا د حيض او نفاس د وينو په مينځ کې دپاکې موده د پينځلسو ورځو او شپو نه کمه وي نو دېته طهر فاسد ناقص او طهر متخلل وائي.

**د طهر غيرمتخلل مثال:** يوې ښځې ته څلور ورځې وينه راغله بيا ديارلس ورځې وينه رانغله بيا پنځه ورځې وينه راغله نو په داسې صورت کې به د شروع نه تراخره پورې مسلسل دوه ويشت ورځې د وينې جاريدل شمارل کيږي او په مينځ کې چې په کومو ديارلسوورځو کې ظاهراً وينه نه ده راغلې هغه به د وينې دجاري کيدو په حکم کې وي لهذا په دې صورت کې به د قاعدې مطابق کتلې شي چې څومره ورځې د حيض جوړيږي د استحاضې اوهم د دې مطابق به عمل کيږي.

**د طهر متخلل حکم:** د دې طهر د وجې نه دواړه وينې جدا جدا نه شمارکيږي بلکې د شروع نه تراخره پوره د يوې وينې مسلسل جاري کيدل شمارل کيږي او نه دا طهر د بيا دپاره معيار او عادت جوړيدې شي بلکې دېته طهر مجازا ويلې شي ورنه په شرعي

اعتبار سره د دم متوالي (مسلسل وينې) په حکم کې دی

**د حمل ساقط کولو نه روسته د راتلونکې وينې حکم**

د حمل ساقط کيدلو درې صورتونه دي:

(۱) **مستبين الخلقه:** که حمل په داسې حالت کې ساقط شوې وي چې ټول اندامونه يا يواندام مثلا وېښتان، نوکان. او ګوتې وغيره ئې جوړ شوې وي نوديته مستبين الخلقت وائي ددې حکم د ژوندي ماشوم په شان دې يعني ددې نه روسته راتلونکې وينه به نفاس شمارل کيږي.

(۲) **غير مستبين الخلقت:** چې د کوم حمل اندامونه نه وي جوړ شوي هغه ته غير مستبين الخلقت وائي ددينه روسته راتلونکې وينه نفاس نه دې بلکې حيض يا استحاضه ده، يعني هغه وينه که د حيض د کمې مودې دريو ورځو نه کمه وي يا ددينه زياته وي او د طهر تام نه روسته راغلې وي نو حيض به وي ورنه استحاضه به وي.

(۳) **مشتبه الخلقت:** که حمل په داسې حالت کې پرېوتو . چې د اندامونو جوړيدو يانه جوړيدو ئې څه پته نه لګي او په دوارو صورتونو کې اشتباه وي نو ديته مشتبه الخلقت وائي حکم ئې دادې چې که حمل د څلورو مياشتو يا ددينه د زياتې مودې وي نو د اسقاط نه روسته وينه به د نفاس وي او که حمل ددې نه د کمې مودې وي نو بيا به حيض يا استحاضه وي.

يعني که دا وينه د حيض د کم مدت دريو ورځو او دريو شپو نه کمه يا زياته وي اود طهرتام نه روسته راغلې وي نو حيض به وي ورنه استحاضه به وي، او که د حمل د مودې علم نه وي نو ددې به حکم کې تفصيل دې.

يعني که ديوې ښځې عادت په حيض کې لس ورځې اولس

شپې د ۲۴۰ گهنټې، او په طهر کې شل ورځې او شل شپې ۴۸۰ گهنټې، وي او د نفاس موده نې څلويښت ورځې او شپې، ۹۶۰ گنتې وي او ددې حمل اتفاقاً د حيض په ورځو کې په رومبي ورځ ساقط شي او وينه جاري شي نو د وينې د جاري کيدلو د ابتدا نه واخله تر لسو ورځو او شپو پورې به دا ښځه ناپاکه شمارل کيږي ځکه چې په دې ورځو کې صرف دوه احتماله دي چې دا ورځې به يا د حيض وي او يا د نفاس ځکه که دا حمل مستبين الخلقت وي نو دا ورځې به د نفاس شمارلې شي او که غير مستبين الخلقت وي نو دا ورځې به د حيض شي او په دې دواړو حالتونو کې يعني د حيض او نفاس په حالت کې په ښځه مونځ کول نه فرض دي او نه صحيح دي چې کله لس ورځې او شپې پوره شي نو دا ښځه به غسل اوکړي ځکه چې اوس د حيض اکثره موده ختمه شوې ده او اوس ددې خبرې امکان شته چې دا ښځه پاکه شويده ددې نه روسته شل ورځې او شل شپې به صرف په اوداسه سره مونځ کوي خو په مونځ کې به په شک سره وي ځکه چې په دې ورځو کې د طهر سره سره د نفاس هم امکان شته ددې نه روسته لس ورځې او لس شپې به يقيناً مونځ پريږدي ځکه چې په دې ورځو کې صرف دوه امکانات دي چې دا ورځې به يا د حيض وي او يا د نفاس ددې نه روسته به غسل اوکړي ځکه چې اوس ددې دويم حيض او نفاس دواړو اکثره موده ختمه شوې ده، او تر شلو ورځو او شپو پورې به مونځ کوي او که مسلسل وينه راځي نو دغه شان به لس ورځې د حيض او شل ورځې د طهر حساب کولې شي.

او که په اتفاق سره حمل د حيض د تولو ورځو (لسو ورځو او شپو) تيريدلو نه فوراً روسته ساقط شي. نو دا اسقاط نه روسته به شل

ورځې او شپې صرف په اودس سره مونځ کوي ځکه چې په دې ورځو کې دوه امکانات دي چې دا ورځې به یا د طهر وي او یا د نفاس. بیا به لس ورځې اوشپې صرف په اودس سره مونځ کوي خلاصه دا شوه چې په کومو ورځو کې د حیض یا نفاس یقین وي په هغو ورځو کې به مونځ نه کوي او چې په کومو ورځو کې په حیض او طهر یا نفاس او طهر کې شک وي نو په دیکې په شک سره مونځ کوي او د طهر د یقین په صورت کې به په یقین سره مونځ کوي



# د حیض او استحاضې بیان

(۱) هره میاشت کې چې کومه وینه د مخکې له طرفه ښځې ته راځي هغې ته حیض وائي کمه نه کمه موده ئې درې ورځې او شپې ده او زیاته نه زیاته موده یې لس ورځې او شپې ده که چاته د دریو ورځو شپو نه کمه وینه راغله هغه د حیض نه دې بلکې استحاضه ده. د څه بیمارۍ د وجې نه به وي او که د لس ورځو نه زیاته وه نو هغه هم استحاضه ده [بهشتي زیور ص ۱۲۵]

(۲) که درې ورځې پورې شوې خو درې شپې نه دي پوره شوې لکه د جمعې په سحر وینه راغله او د اتوار په ماښام بنده شوه بیا هم دا حیض نه دی حواله بالا

(۳) د حیض په مودې کې سره زیړه. شنه او خاورو پشان کوم قسم وینه چې هم راغله دا ټوله د حیض ده، چې تر کومه پورې د مالوچو بالکل سپین شوې نه وي چې ایځې شوې مالوچ بالکل سپین شي

نو اوس به حيض نه پاکه وي.
دنهو کالو نه مخکې او د پينځو پينځوس کالو نه روسته حيض نه راځي ددې وجې نه د نهه کالو نه مخکې او د پينځه پنځوس کالو نه روسته چې کومه وينه راځي هغه استحاضه ده اوس د۵۵ کالو نه روسته چې کومه وينه راشي که هغه بالکل سره یاتوره وي نو حيض دې او که شنه زيړه يا خاورينه رنګ والا وي نو استحاضه ده . البته که دغې ښځې ته د ۵۵ کالو نه مخکې زيړه . شنه يا خاورينه رنګ والا وينه راتله نو په دې عمر کې به هم حيض وي او که د عادت خلاف داسې وينه راغلې وي نو استحاضه به وي.
يوه ښځه چې د هغې عادت مقرر نه وي کله څلور ورځې کله اوه ورځې وينه راځي کله لس ورځې هم راځي نو دا ټوله وينه د حيض ده داسې ښځې ته که کله د لسو نه زياته وينه راشي نو کتلې به شي چې دينه مخکې مياشت کې څومره حيض راغلې ؤ بس دومره ورځې به حيض وي او بقيه استحاضه .
يوې جينۍ اول ځل وينه اوليده نو که لس ورځې يا ددې نه کمه وي نو ټوله د حيض ده. او که د لسو نه زياته راشي نو لس ورځې حيض دې او زياتي استحاضه ده.
د دوه حيضونو په مينځ کې د پاکې موده کمه نه کمه پينځلس ورځې ده. او د زيات هيڅ حد نشته نو که د څه وجې نه حيض نه راځي نو چې څومره وينه حيض نه راځي هغه ټوله به د پاکۍ زمانه وي
او که يوه يا دوه ورځې وينه راغله او پينځلس ورځې پاکه وه بيا يوه يا دوه ورځې وينه راغله نو په مينځ کې پينځلس ورځې د پاکې زمانه ده .

Scanned with CamScanner

د حمل په زمانه کې چې کومه وینه راځي هغه هم حیض نه دي استحاضه ده برابره خبره ده چې څومره هم وي.

د بچي پیدا کیدلو په وخت کې د بچي راوتلو نه مخکې چې کومه وینه راځي هغه هم استحاضه ده، بلکې تر کوم پورې چې د نیم بچي نه زیات نه وي راوتلې تر هغه پورې به دا وینه د استحاضې وي.

د حیض په زمانه کې مونځ او روژه نیول صحیح نه دي البته دومره فرق دې چې مونځ بالکل معاف وي قضا ئې نیشته او روژه معاف نه ده بلکې روسته به ئې قضا اداکوي.

که په فرض مونځ کې حیض شروع شو نو هغه هم معاف دې.

که د مونځ په اخري وخت کې حیض راغلو او تر اوسه ئې مونځ نه دې کړې بیا هم دا مونځ معاف دی.

که عادت کې پنځه ورځې وي او وینه په څلورو ورځو بنده شوه نو غسل به اوکړي او مونځ کول هم واجب دي.

خوتر کومه پورې چې پینځه ورځې نه وي پوره خاوند به ورسره صحبت نه کوي کیدلې شي چې بیا وینه راشي.

یوې ښځې ته د دریو ورځو د وینې راتلو عادت وي خو یوه میاشت داسې اوشول چې درې ورځې پوره شوې خو وینه بنده نشوه نو اوس به غسل نه کوي او نه به مونځ کوي که پوره په لس ورځو یا ددې نه کمه وینه بنده شوه نودې ټولو ورځو مونځونه معاف دي، او داسې به ویلې شي چې عادت ئې بدل شو او که یولسمه ورځ هم وینه راغله نو اوس معلومه شوه چې د حیض ئې صرف درې ورځې وې بقیه استحاضه ده، نو غسل به اوکړي او د اوو ورځو مونځونو به قضا راوړي.

که پوره لس ورځې اوشپې وینه راغله او داسې وخت بنده شوه چې

صرف دومره وخت شته د مونځ په وخت کې چې صرف یو ځل الله اکبر او وائي نو د مونځ قضا واجبه ده.

چې کله وینه د سورې نه بهر راشي او په څرمن اولګي بیا به حیض شروع کیږي که چا په فرج کې مالوچ ایخي وي نو ترکومه چې وینه په بهر طرف ښکاره شوي نه وي نو حیض به نه شروع کیږي

د پاکې ښځې په خپل فرج کې مالوچ کیښوده چې سحر شو نو د حیض وینه پرې لګیدلې وه. نو چې کله ئې وینه اولیده حیض به شمارل کیږي.

د حیض په وخت کې په فرج کې مالوچ کیښودل د خوانې باکرې دپاره مستحب دي او ثیبې دپاره د حیض په حالت کې سنت او ددې نه علاوه د پاکې په حالت کې مستحب دي.

که یوې ښځې ته د درد یا بل څه علامې نه د حیض راتلل معلوم شول خو تراوسه وینه د فرج په بهرنی حصه څرګنده شوې نه ده. نو داسې صورت کې مونځ پریخودل جائز نه دي.

مبتداء هغه ښځې ته وائي چې په ژوند کې ورته اول ځل حیض راغلې وي

معتاده: کومې ښځې ته چې د تیرشوي عادت موافق حیض راځي هغې ته معتاده وائي.

ناسیه: کومه ښځه چې د خپل حیض او طهر یا صرف د حیض عادت هیر کړي دیته ناسیه وائي. ضاله . مضله او متحیره هم ورته وائي.

Scanned with CamScanner

## د عادت یا ساتلو طریقه

هرې ښځې ته که مبتدا وي که معتاده دخپل حیض او طهر عادت ورته یاد ساتل پکار دي او ددې طریقه داده چې مثلاً په دریم رمضان په ورځ د چارشنبې ۱۱:۲۰ باندې د حیض وینه شروع شوه. او په اتم رمضان د پیر په ورځ سحر ۸:۲۵ باندې ختمه شوه ددې نه روسته بیا په پنځویشتم رمضان د زیارت په ورځ سحر لس بجې حیض شروع شو او په دیرشم رمضان په ورځ د منګل ماښام پورې جارې ؤ نو ګویا ددې ښځې د حیض عادت څلور ورځې دولس ګنټې او پینځه منټه دې او د طهر عادت ئې اولس ورځې یوه ګنټه او پینځه دیرش مینټه دې.

ددې بیان مطابق هرې ښځې ته که معتاده وي او که مبتدء د خپل حیض او طهر عادت ورته یاد ساتل او محفوظ کول ضروري دي.

[خواتین کے مخصوص پاکي وناپاکي کے احکام ص۳۲]

ترجمه

العبد الضعیف فضل امین حقاني بداره الفاني

واسال الله ان یجعله خالصة لوجهه الکریم



Scanned with CamScanner

